# څرک

اتم کال دوولسمه ګڼه، پرلپسې ۷۶ ګڼه، سنبله، ۱۳۹۲ ل، شوال ۱۴۳۴ ق اګست ۲۰۱۳م

## پرشام دامریکا یرغل دکومو اهدافو لپاره ؟

## اسلامي نړۍ

ډېر افسوس ! داسلامي نړۍ په حال ......!!

## داستقلال ورځ

دمسلميار! نامسلمي خبرې ! ؟

حکومت استوار بر دیانت است نه بر سیاست

دننګرهار والي محترم مولوی سیرت :

**ننګرهار کې دښمن هیڅ وخت او په هیڅ ځای کې ارام ، مطمئن او مصئون نه دی**



## ګوډاګې میډیا او د تورخم برید !

# سرک

علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه




سرلیک


اتم کال دوولسمه ګڼه - پرلپسې 76 ګڼه - سنبله 1392ل، شوال المکرم 1434ق - اګست 2013م





**امتياز :**

دامتيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل ميړني او افضل محمد تراب

**ګڼوت :**

افغانستان : 180 افغانۍ

پاکستان : 240 کلدارې

امريکا : 60 ډالره

اروپا : 60 يورو

يوه ګڼه : 15 افغانۍ
25 کلدارې

**يادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

**پته :**

تخنيکي چارې : عابد مجاهد

کابل : د څرک دفتر

srak_111@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم

# سرمقاله :

## دمصر کودتاچیان څوک حمایه کوي ؟

دمصر پوځي اوخونړۍ کودتا چې له امله یې دمصر ۲۰ زره تنه بې دفاع مسلمان ولس دخپلو برحقو غوښتنو په جرم ! قتل عام اوله امله یې دوینوویالي وبهولې ، ټول اسلامي امت یې دغم اودرد په ټغرکښیناوه.

دمصر کودتاچیانوچې ټول اسلامي اوانساني قوانین یې تر پښولاندې کړل اویومنتخب ولسمشریې له واک څخه لیري اوزندان ته ولیږه په هغه یې هم زړه یخ نشواوبالاخره یې دمصرپه هغه لوی اوکړیدلي مسلمان ولس چې له پیړیوپیړیوراهیسي دیوه اسلامي نظام اوملي حاکمیت ارمانجن وو ، نه یوازې ناهیلي اوپه پاکو ارمانونویې خاوري وروارولي داحق یې هم ورنکړای شو چې دغه مومن ولس خپل غږ پورته کړي اوپه سوله ییزډول خپل فریادوباسي ، هماغه ووچې مصري کوتاچیانو داسرائیلوغاصب رژیم اوامریکایانو په ځانګړې قومنده له ځمکي اوهوا څخه دزرګونومسلمانانووینې تویې کړې اویوه لویه انساني تراژیدي یې رامنځته کړه.

که چیري امریکااوغرب دمصري ولس په روان ناورین کې لاس نه درلودی اودکودتاقومنده یې نه وای ورکړې ، نوبیاولي تردې دمه دغوشیطاني ځواکونو دزړه له تله جدي غبرګون په ډاګه نکړ، کودتاچیانوته یې ګوت څنډنه ونکړه اولږ ترلږه یې دمصردمنتخب دولت دنړولولامل کودتاونه بلله !!؟

دیوه هیواد دپوځ دنده هیڅکله دانده چې هغه په داخلي امورو کې تردې کچې مداخله وکړي چې برحاله اودخلکوپه غوښتنه راغلی اومسلط رژیم ونمړوي او قوانین تر پښولاندې کړي ، بلکې دنده اومکلفیت یې دادی چې دخپل هیوادله ارضي تمامیت اواستقلال څخه دفاع وکړي اودخارجي یرغلګرومخه ونیسي ؛ نه داچې په خپل بې وسه اوسوله غوښتونکي ولس خپل استبداد وکاروي ، په جوماتوروغتونو ، کورونو ، واټونو ، لاراو کوڅوکې پرې دمرمیو بارانونه جوړکړي ، ټانګونه پرې وخیږوي اوژوندی انسانانوته اورونه واچوي !!

مونږ په داسې حال کې چې دمصر دوحشي پوځ دغه ورستی اوروان وحشت اوقتل عام په سختوالفاظو محکوموو او له مصري ولس سره خپله همدردي او خواخوږي په ډاګه کوو ، په هغو شقی القلب ضمیرونو اوانسانانو چې دمصري پوځ کړني اوجنایات توجیه کوي غرونه غرونه نفرتونه پرې وایو.

د متعال رب جل جلاله ، دربارته لاسونه لپه کووچې داسلام اوانسانیت ددښمنانوله شرا وبربریت څخه نور اسلامي امت ته نجات ورکړي ، په ټاټوبوکې یې ددوی دخوښې اسلامي واکمنی حاکمي او نافذې وګرځوي اوپه خاص ډول دمصر دمظلوم ولس حافظ اوناصرشي ( امین )



# ګوډاګې میډیا او د تورخم برید!

عبيد تنوير ..........................................

باوروکړی پرون مې له یو مخلص ملګري سره په دې خبره بحث کولو چې مجاهدین اخرولې د کډه په شا امریکایانو په هغو وسایطو، ټانګونو او بارقیمتي وسایلو باندي برید نکوي چې د تورخم په یوې پوځي اډې کې راټول کړل شوي او هره ورځ ترې یوشمیرکتارونه د پاکستان په لورروانیږي او د تیښتې لارخپلوي، زما ملګري ویل چې که په حساب ۳ مجاهدین کلک تصمیم ورته ونیسي، هغه ښوک یې چې ساتي هغوی ایمان او غیرت نلري، بلکل به ورته مسخرکیږي یا به تښتي او یا به سربایلي.

د الله تعالی کارونه ګوره چې نن سهار وختي همغه ملګري راته میسج ولیږلو چې خبرشوي کنه د تورخم په امریکایي اډې برید شوي او ټول ولاړ ټانګونه، ټیلر، وسلې او وسایل د مجاهدینو په یوه تاریخي برید کې داورلمبه اولولولپه ګرځیدلي چې پرون یې ما او تاذکرکولو.

ورسته مې چې خبرونه واوریدل او د عیني خلکو خبري چې پیښه یې په سترګو لیدلې وه واوریدې ؛ نو ومې ویل، څنګه چې ما او ملګري مې هسې په ګپ شپ کې خاکه او نقشه برابره کړې وي، همغه ته ورته الله تعالی د څوتنو مجاهدینو په مټو کې قوت او هیبت واچاو او له استعمار څخه یې د تیښتې په ورستۍ ځاله کې لوی انتقام واغچ واخیست او زړه مو پرې یخ شو، ځکه له دغو ټانګو او جنګي وسایطو څخه به زمونږ د ملت په وړاندې څومره مرمی وریدلي وي او د څومره جنایتونو د ترسره کیدا په لار کې به کاریدلي وي.

د تورخم برید په داسې یوې نقطه کې ترسره شوی چې هغه ځای له هیچا پټ او په پرده کې ندی، بلکې په رانه میدان کې امریکایانو د خپلو ټانګونو او وسایطو لپاره له ډیره وخته تم ځای او لوی مرکزجوړکړی وو، خو په دومره توپیر چې پخوا به د پاکستان له لوري په ټیلروکې ټانګونه او نورجنګي تجهیزات دغې اډې ته راتلل او بیا به بګرام او نورسیموته وړل کیدل، سږ کال بیا له بګرام او نوروولایتونو څخه امریکایي ټانګونه او درني وسلې او لوازم همدغې اډې ته راټولیدلي او بیا به هره شپه او ورځ له مهال ویش سره سم د افغانستان له پولي د پاکستان په لاره د خلیج بحرته رسول کیدل.



کوموعاموخلکوچې دغه برید په خپلو سترګولیدلی وايي چې په اډې کې ولاړټول ټانګونه اووسایط چې شمیرېې له سوونوهم اوړي له منځه تللي اوتورسکاره ګرځیدلي او په خواکې دملي اردومرکزته هم درون ځاني اومالي زیان رسیدلی ؛ خوپه ډالرومسته اوګوډاګې میډیاپه دغوټولو حقایقوغواړي پرده واچوي ، هغه توري لوخړي اوداورلمبې پټې کړي چې په کلومترګردچارپیرخلکولیدلي اوننداره یې کړې.

ولې ډالرخوري میډیابیا نوموړي پیښه دارنګه تبلیغ کړه چې (د تورخم جګړه د بریدکونکوپه وژلوپای ته ورسیده )

دیرغلګروپه خدمت اوچوپړکې دغه ولاړه اومصروفه میډیااورسنۍ دومره غلامي ته ملاتړلې چې اصلي حقایق څه چې وچ دروغ سره ګډوي اوپه رڼاورځ سپین په توراړوي ، تاسې ددې خبررنګ اوامریکايي پالش ته وګورئ چې دتورخم جګړه دبریدکونکوپه وژلوپای ته ورسیده !! یعني په دغه جګړه اوبرید کې بل هیڅ هم ندي ترسره شوي اودمخالف لوري چې امریکایان اویااجیره اردوده دهغوپزه هم نده ویني شوي اودودانیو کوم دیوال اوښیښه یې هم نده ماته اونړیدلې ؟!!!

زه دغې اجیرې میډیاته وایم که نورهیڅ هم نشی کولای اودخپلو بادارانو له ویرې دمجاهدینواوعیني شاهدانو هغه کره معلومات قدری هم نشی خپرولای دومره خونشرکړی چې دتورخم بریدلوی زیان اړولی خوامریکايي ویندویان یې له تفصیلاتوورکولونوره ډډه کوي !بیابه موبوڅه غاړې خلاصې شي اوکه غواړي چې دلسګونو ټانګوسکروټې اولوخړې پټې کړي دابه مولویه جفااوغداري وي.

دتورخم ورستی بریدلدې امله له ډیراهمیت څخه ډک دی اوشایدامریکایان په جنون راولي چې دسوونومیلونو ډالروپه ارزښت ټانګونه اوقیمتي وسایل اوتجهیزات یې په داسې یوه نقطه کې راټول کړي وي چې هغه ځای یې مصؤن اوله هرډول خطرڅخه خلاص باله اوکوم تکتیک چې مجاهدینوپرې وکارلوه چې لومړی یې په اډه کې په ولاړ ویو شمیر ټانکونو کې چسپکي ماینونه ځای پرځای کړل او وروسته یې انفجار ورکړ چې له امله یې دټانګونو او پوځي عرادجاتو په منځ کې سترې چاودنې رامنځ ته شوې او نه قابو کیدونکي اوربل شو ، بیامجاهدینو مخامخ وسلوال برید پیل کړ اوپه اډه کې میشت عسکر یې تربرید لاندې ونیول ، فکرکوم چې امریکایانواوګوډاګیانوبه په دې ډول د کوم بریداوتکتیک هیڅ سوچ اوتصورهم نه ووکړی.

زه ددغې ورستی بریاله امله افغان مجاهدولس ته دمبارکۍ ترڅنګ ترټولو زیات هغواتلانوته دعقیدت نذراني وړاندې کوم چې په خپل بې ساري جرأت اومتانت یې داستکبارغرورونړواوه اوپه یوه ساعت کې یې امریکایانوته دسرپه زیانوسربیره نیږدې ۲ سوه میلونه ډالره زیان اوتاوان واړاوه ، الله تعالی دې دهغوی فداکاری اوقربانی په خپل دربارکې قبولي وګرځوي .امین

# پرشام دامریکا یرغل دکومو اهدافو لپاره ؟

حسن مومند

**په شام کې نېږدې راتلونکو ورځو کې څه کېدونکي دي ؟**

پدې الله تعالی ښه پوهېږي خو دحالاتو او قراینو نه داسې ښکاري چې امریکااومتحدینوېې چې دداخلي جنګ په نتیجه کې دشام کومه بربادي غوښتله او دشامي ولس ترمنځ یې کوم منافرت او دښمني خپروله خبره تر هماغه حده رسېدلې ده او اوس دوئ په خپل ګومان په شام دیرغل لپاره ټول حالات مناسب ګڼي او ددې وخت رارسېدلی بولي چې ولسمشر اوباما هم دولسمشر بش په پل قدم کېږدي اوپه شام کې هم دعراق اولیبیا تاریخ ژوندی کړي ؛ بش په عراق دعامه وژونکو وسلولرلو تورپورې کړ اوبیایې پرې یرغل وکړ اوس دامریکا بل ولسمشر بارک اوباما د شام په غوطه نومې سیمې کې دکیمیاوي وسلو کارول او پکې د سونو ولسي وګړو مړینه او ټپي کېدل پلمه کوي او پر سوریې حملې کولو ته تیاري نیسي ؛ پدې لړ کې یې پنځمه سمندري بېړۍ هم د روم بحیرې ته رسېدلې ده ، فوځ دتیارسۍ حالت کې دی او دولسمشر دقوماندې انتظار کوي .

اوباما ویلې چې ,,تراوسه یې په شام دحملې کولو پرېکړه نده کړې او په راتلونکي کې به پرې په محدوده پیمانه حمله کافي شي ،، هغه پی.بی.ایس نیوز سره په مرکه کې وویل چې ,, دشام دولت دمشق ته څېرمه په غوطه سیمه کې پر ولسي وګړو دکیمیاوي وسلو کارولو کې ککړ دی او پرې به حمله دځانه سره دا پیغام ولري چې دکیمیاوي وسلو کارول ډېر خطرناک عمل دی ،

دامریکا ۲ مهمو متحدینو برتانې او فرانسې هم خپلې جنګي بېړۍ ،طیارې او نور جنګي وسایل سیمې ته رسولي دي او دبرتانې لومړي وزیر ډیویډ کیمرون ویلي دي چې دامنیت دشورى له اجازې پرته هم پر شام حمله کول جواز لري .

دامنیت شورى ۲ دائمي غړو چین او روسې پر شام دحملې سره خپل سخت مخالفت ښکاره کړی او له امریکا له لورې دامنیت شورى کې پرشام له حملې لپاره وړاندې شوی لوظنامه هم له همدې دواړو هیوادونو له لورې ویټو شویده.

دملګرو ملتونو سرمنشي بان کي مون ویلي دي چې دامریکا ولسمشر سره یې ټیلفوني تماس ټینګ کړی او ورته یې ویلي دي چې ترڅو دملګرو ملتونو له لورې سیمې ته دکیمیاوي موادو په اړه دتحقیقاتي پلاوې راپور مخې ته نه وي راغلی پرشام دې حمله نه کوي او دحملې لپاره دې روان تیاری هم ودروي.

واتیکان ویلي دي چې دشام دمسئلې یوائینی حل مذاکرات دي .

که څه هم ډېره نړۍ پرشام دحملې کولومخالفه ده خو قرائن او شواهد دا وایي چې پرشام دحملې په اړه په لویدیځ کې نغاره وهل شویده ،امریکا،برتانې او فرانسې دحملې لپاره خپل تیاری بشپړ کړیدی او ددې قوي امکان دی چې په راتلونکو لسو دولسو ورځو کې دناټو غړي یاد۳مخکښ هېوادونه پرشام یرغل وکړي .

د تېر یو کال په اوږدو کې په نړیوالو رسنیو کې دا خبر بیا بیا تر غوږو کېدلو چې شام دخپلو ډیپو ګانو نه کیمیاوي وسلې دجنګ تودو سیمو ته انتقال کړیدي او شاید دخپلو مخالفینو پرضد یې په سخت حالت کې وکاروي .

ددې خبرونو په اړه دعکس العمل ښکاره کولو په ترڅ کې بشارالاسد وویل چې ،،دولسي وګړو پرضد به هیڅکله کیمیاوي وسلې ونه کاروي خو که بهرنو طاقتونو پر شام حمله وکړه نو دخپلې دفاع لپاره به کیمیاوي وسلې وکاروي ،،

بشارالاسد دلته نه یوائې دا چې دکیمیاوي وسلو شتون یې ومانه بلکې ددې وسلو دکارولو اراده یې هم ښکاره کړه چې

دنړیوالو قوانینو له مخې داد جنګي جرمونو په فهرست کې راځي بیا ۳ ځلې دولس پرضد ددې وسلو د کارولو شکایتونه هم پورته شول خو دنړیوالو له لورې پدې اړه هیڅ معقول عکس العمل رامخې ته نه شو.

د کیمیاوي وسلو د کارولو دګواښ او د بالفعل کارولو پرته په تېرو کابو ۲۹ میاشتو کې دداخلي جنګونو په جریان کې ۷ میلیونه وګړي بې کوره شول ، نورو هیوادونو ته دکډه کونکو شمېر درې نیم میلونو ته ورسېد او څلور میلیونه کوچنیان غذایي مرستو ته سخت اړ شول، دملګرو ملتونو دمهاجرینو ځانګه وایي چې په ۱۹۹۴ کې په نسلي بنسټونو دروندهاد قتل عام په نتیجه کې درامنځته شوي هجرت نه پس دشام هجرت تر ټولو ستر هجرت دی.

ددرندو وسلو دکارولو له امله ډېرې سترې ورانۍ رامنځته شوې چې دبیا ودانولو لپاره به یې لسګونه کلونو ته اړتیا وي

اوس هم هره میاشت په شام کې تر ۵ زرو پورې انسانان وژل کېږي ؛ داډېر ستر بشري ناورین و خو نړیوالو سترو ځواکونو او خصوصا امریکا ته دا هیڅ هم په نظر نه راتلل او نه یې هم ددې شدید بحران نه ددې هېواد دراویستلو لپاره قدم پورته کړ بلکې برعکس یې دشام دمسئلې دسیاسي حل لپاره درامخې ته شوي هر کوښښ مخنیوی کړیدی چې پدې اړه په نړیواله سطحه دسختو اعتراضونو لاندې هم راغلې ده ؛ دامریکا او اروپا جاسوسو ادارو دشام دسیاسي حل په لاره کې ددې لپاره خنډونه رامنځته کول او دشام دخپلمنځې جنګ اورته یې لمن وهله چې دعربو قومي اتحاد ټوټه ټوټه او دیني او قومي تشخص یې له منځه ولاړ شي ترڅو داسرائیلو په نوم دغاصب دولت دټولو شومو صهیونستي پلانونو دعملي کېدو په لار کې شته خنډونه له منځه ولاړ شي ، له هرډول مزاحمت پرته ددې غاصب رژیم پراښتیا غوښتونکي مقاصد ترلاسه او دتل لپاره داناقانونه اوناروا دولت په امن کې شي .

دخپل ولس پرضد د کیمیاوي وسلو کارول خو را ډېر ناوړه عمل دی چې څومره زیاته غندنه یې وشي کمه ده او دشام هغه مشران چې ددې وسلو د کارولو حکم یې ورکړی وي باید چې خامخادمحاکمې مېز ته راښکل شي .

هو! یوازې هماغه تنان چې واقعي مجرمین دي باید محاکمه شي ؛ نه داچې کوم مظلوم ولس ته چې ددې ستر جنایت په نتیجه کې لوی تاوان رسېدلی دی ورباندې حمله وشي اوددې نه په زرونو چنده ستر نور تاوانونه ورواړول شي ؛ نودمسئلې دحل لار پرشام فوځي یرغل ،دلته یو بل قتل عام او ددې هېواد لا زیاته تباهي او بربادي نده، نه په فوځي یرغلونو مسائل حل کېږي او نه یې هم کله مظلومو ولسونو ته ګټه رسولې ده، فوځي یرغل پخپله یو ستر ظلم او خپلو شومو اهدافو ته دغاصبو قوتونو درسېدلو یوه پلان شوې لار ده نو باید ټوله نړۍ او په ځانګړې توګه عالم اسلام ددې یرغل دمخنیوي لپاره خپل ټول کوښښونه په لار واچوي او پرېنږدي چې دسیمې امن لاپسې خراب او دلته یو ستر بشري ناورین رامنځته شي.

په داسې وخت کې چې دامریکا ، نور لویدیځ او اسرائیلو د دسیسو په نتیجه کې په مصر کې داخوان المسلمین دولت ړنګ او دلته دفوځ په لاس دعامه وژنې نه پس دبدامنۍ ،بې اطمینانۍ او ددولت او ولس ترمنځ دنفرت نه ډکه فضارامنځته شوی د کیمیاوي وسلې کارېدل پلمه کول او په شام فوځي یرغل یوازې او یوازې دشام په څنګ کې دغاصب بزدله اسرائیلي دولت تحفظ او د اسرائیلو له لورې دخوا اوشالازیاتو سیمو دغصب په لار کې دټولو خنډونو له منځه وړل دي .

ددې مذمومو اهدافو دلاسته راوړلو لپاره به دوئ داکامیابه لار ګڼي خو په حقیقت کې دا خو راډېره ناکامه لار ده ځکه خوبې دزیاتره لویدیځو هېوادونو ولسونه ،شنونکي او باشعوره کړئ مخالفت کوي اودا ډېر منفي اقدام بولي نو اوس ددې خبرې ډېره ستره اړتیا ده چې امریکا او متحدین یې خپل ځانونه لازیات بدنام نکړي او دټولې سیمې حالات د لازیات خرابوالي په لور دوړلو پرځای دمسئلې حقیقي حل ولټوي .



# حکومت استوار بر دیانت است نه بر سیاست

(سعیدی)

کشور های اسلامی با وجود دا شتن منابع طبعی و سر شار در این آواخر در هر گوشه دنیا دچار ور شکستگی و با چالش های پیهم روبرو بوده در قلمرو سقوط قرار دارد چرا ؟

آیا دولت مردان این کشور ها به سیاست آشنا نیستند ویا اینکه وسایل ترقی وپیشرفت وجود ندارد جواب واضحیست که مسلمانان همه را دارند اما از یک چیز یکه محور وهسته اصلی حکومت داری است عاری هستند او عبارت از دیانت داری وعدالت اجتماعی است . حاکم در اریکه حکومت نشسته هست ویا قاضی در کرسی قضاوت نشسته هست شک نیست که نظام امن را در اجتماع قایم کرده میتواند بشرطیکه دیانت داشته باشد وحکمش در قالب عدالت باشد بر عکس از فیصله هایش شایبه ازجور ، ظلم وزیادتی بر ملا میگردد وتمام امت را بر یک نگاه نمیبینند ودر بین خود ودیگران فرق میکند آن حاکم وقاضی حکومت را هم تباه میکند و در ضمن خود هم تباه میشود چنانچه الله متعال در کلام ملکوتیش در ارتباط عدل وانصاف چنین میفرماید (یایهاالذین امنوا کونوا قوامین بالقسط شهداء لله ولو علی انفسکم او الوالدین والاقربین )ای کسانیکه ایمان آورده اید شما قوام بالقسط باشید یعنی با عدل وانصاف فیصله کنید ودیانت داری را در احکام تان بگنجانید اگر چه دیانت داری بر خلاف مقتضیات نفس تان باشد واگر چه بر علیه والدین و اقربای تان باشد در زمانه خلافت امیر المؤمنین حضرت علی رضی الله عنه ایشا ن یک دعوی نمودند قاضی القضات آنوقت کسی بنام شریح بود وصورت دعوی را حضرت چنین بیان داشتند یک حلقه زره که من در هنگام جنگ بر سر خود میپوشیدم در نزد فلان یهودی میباشد بزبر دستی در پیش خود نگاه داشته است ومیخواهم بر زره مذکور تصاحب شوم البته دعوی امیر المؤنین بر حقانیت استوار بود قاضی شریح امیرالمؤمنین را در دفتر قضا احضار نمود با وجود اینکه قاضی شریح ما تحت حضرت علی رضی الله عنه خلیفة المسلمین بودند اما مقام عدل وانصاف آنقدر ازاهمیت والا بر خوردار است که امیر است یا شخص عادی اگر بر علیه کسی اقامه دعوی نماید باید در محضر قاضی بصفت مدعی ومدعی

علیه حاضر شود لهذا امیر بعنوان مدعی ویهودی بسمت مدعی علیه در یک مکان حاضر شدند وصورت دعوا را حضرت بیان نمودند سپس قاضی از ایشان سوال نمود که حضرت کدام بینه ویا شاهدی در اثبات دعوای شان دارند ؟ حضرت دو نفر شاهد را یکی پسر شان حضرت حسن رضی الله عنه ودیگری غلام شان را پیشش نمودند قاضی شریح فرمود گواهی پسر در حق پدر در شریعت اسلام مقبول نمی باشد وغلام یک نفر است نصاب شهادت را تکمیل نمیکند لهذا بر علیه حضرت وبر فایدۀ یهودی فیصله صورت میگیرد این دیانت است که با وجود تفاوت مقام امیر المؤمنین و یهودی چنین حکم وفیصله صورت میگیرد واز جمله آثار عدل وانصاف اینبود که غیر مترقبه یهودی از جایش بلند میشود وبآواز بلند کلمه طیبه را که (اشهد ان لا اله الا الله واشهدان محمد رسول الله از اخلاص قلبش زمزمه مینماید ودر دایرۀ اسلام داخل میشود ومیگوید دینیکه در اوچنین عدل وانصاف وجود داشته باشد که امیر وغریب بیک نگاه دیده شود ودر هنگام قضا میلان جزئی بیک طرف صورت نگیرد آن دین کامل واز حقانیت آشکار خبر میدهد و علاه میکند بیشک زره مذکور از آن امیر المؤمنین حضرت علی (رض) است ودر دعوای شان صادق میباشد حضرت این واقعه را مشاهده نموده میفر مایند وقتی تو مشرف باسلام شدی برایم همه چیز است اکنون بر زره ضرورتی ندارم وهمان زره از ان تو باشد همین است که در یک واقعه قضای حقیقی که در آن دیانت داری ،عدل وانصاف است چقدر مزایا معلوم میشود حقوق فرد رعایت ، حقانیت دین اسلام بر ملا ،عظمت صفت عدالت آشکار نتیجتا انقلاب عظیمی رادر عقیدۀ یک انسان ببار میآورد و اعتماد عوام در بر ابر حاکم تحکیم میآبد شخصی دربین ملت احساس کمی ، مظلومیت و حق تلفی رانکندودر دین ومذهب خود وفا دار میماند وقتی در وجود عدالت متیقن باشدهیچوقت جرأت شرارت وبد امنی را کرده نمیتوانند از اوسد قوی بر نفوذ دشمنان اسلام ایجاد میشود ونمیتواند فکر ونظریه ملت را تغیر داده علیه نظام دولت استعمال نماید امروز که در کشور های اسلامی اغتشاش ،قیام های ملی ، کشمکش های سیاسی در اوج خود رسیده هما نا علت اساسی آن همین است که دولت مردان در دام استعما ر فرو رفته همانند غلامان حیات خود رادر پرتو منافع اجانب وبیگانگان احساس کرده شراب موقف وجاه طلبی عقل های شانرازایل نموده از حال ملت ونظام بیخبر وکشور را در امتداد بربادی وهلاکت میکشانند وآبادی های یک کشور ویک قدرت پارچه پارچه گردیده روزنه برای نفوذ دشمن ایجاد بالآخره دست خوش بیگانگان قرار میگیرد اگر مسند نشینان ممالک اسلامی دیانت ،عدل وانصاف در برابر ملت را در جای ظلم ،وبیداد گری علیه مردم انتخاب نماید ، اغیار گرای را در مقام خود گرای قایم نماید ، بر عکس هوس رانی وعیش پسندی تفکر وتحصن کشور را نصب العین قرار بدهد همانا هیبت وعظمت عمری پیدا شده ، اریکه قدرتش وسیع میگردد چنانچه در ابدان ، اجسام وظواهر ملت حکومت میکند قلب ها وضمایر عوام را نیز تسخیر مینماید . بلی مردم در حضور سردار جابر وجفا گر اگر چه اطاعت وفرمان برداری را تظاهر میکند چون بخلوت میرود نفرین ولعنت ها را میفرستد وهمیشه در فکر نابودی آن میکوشد .

مثال واضحش در عصر کنونی سوریه ، مصر وغیره کشور های عربی است زمام داران این سر زمین ها بخاطر راضی نمودن آقایان غربیشان در برابر ملت از هیچ ظلم وجور دریغ نکردند جغرافیای که در آن نورالدین زنگی وصلاح الدین ایوبی (ح) مهرۀ های عدالت اجتماعی را استوار نموده خطه وجغرافیای حکومت اسلامی را تا خاک اروپا رسانیده بود یهود ونصرانی ها در دامن مذلت وخواری سقوط کرده دست صلح آشتی را دراز نموده بود باتأسف امروز فر هنگ وکلتور غربی های گرگ صفت درآن سر زمین هاحاکم خلاصه دارایی ها وآلات حربی شان بر علیه ملت شان استعما ل میشود و باشارۀ یهود ونصرانی های فرصت طلب هر روز خون هزاران مسلمان میریزد و از آنسوی مرز از فر یا د بیوه زنان وایتام امت مسلمه لذت میبرند.

# ډېر افسوس ! د اسلامي نړۍ په حال ......!!

رحيمي

نن ورځ په نړۍ کې تربل هرچا دمسلمانانو وينه ډېره ارزانه او هرځای لکه داوبو پشان پريمانه بهول کېږي زمونږ له هېواده نيولي تربرما، کشمير، مصر ،عراق ، شام اوفلسطين کفري ځواکونه په مستقيم اونامستقيم ډول دمسلمانانو په ټولوژنه لګيادي.

هغه مسلمانان چې دخپلو حقونو لپاره مبارزه کوي دکفارو له سلطي اسلامي امت ازادول غواړي ورباندې ټوله زمکنۍ کره سور تنور ګرځول شوي ، هغوئ دزمکې په مخ دژوند له حقه محروم کړل شوي ،امريکايانواونور ودهغوئ مظلومانو په وژلو اونيولو لوړ، لوړ انعامونه ټاکلي ، ددې څخه علاوه په پراخه کچه دمسلمانانو نسلي ټولوژنه دوام لري ، هره ورځ په سوونو مسلمانان په ډېروحشت اوظلم سره دکافرانو لخوا وژل کېږي ، په دې ارته اوپراخه نړۍ کې هيڅوک د مظلومو مسلمانانو چيغي اوکوکاري نه اوري ، دنړۍ ټول اسلامي اونا اسلامي هېوادونه دکفر په پلوۍ اودظلم په ملاتړ ولاړدي.

په دې وروستيو کې مصر کې ديوه غلام جنرال اودې دور دفرعون ( سيسي ) لخوا ددغه هېواد دمشروع اوقانوني حکومت په ضد نامشروعه کودتا وروسته هلته هره ورځ دمظلوموا وبې دفاع مسلمانانو دقتل عام وحشيانه لړۍ دهمدې تور بهير برخه ده چې په کفري تالارو کې پلان اوجوه شوي ده ، څودمصر په څېر يوه مهم اسلامي هېواد کې داسلامي نشأة ثانيه لار وتړي اوهلته چې دمسلمانانو سره په زړونو کې دخپل راتلونکي په اړه کومي هېلي او ارزوګاني راټوکيدلي هغه زندۍ کړي په خاصه توګه په دې وروستيو کې دمصر لخوا چې دغزي دکلابندو مسلمانانو سره کومه دهمدردۍ روحيه راپيداشوي هغه له منځه يوسي ، له کومي ورځي نه چې د ولسمشر مرسي قانوني حکومت ړنګ شوی له مصر نه غزي ته تللي لار تړل شوي اويووار بيا دغزي مسلمانانو له هره لوري کلابند پاتي دي

ترټولو زياته دانديښنې اوافسوس وړ داده چې دمنځنې ختيځ يوشمېرهېوادونو ددې په ځای چې دمصر دنوي فرعون لخوا دمرسي دقانوني حکومت ړنګول وغندي ، دمصر دمظلوم مسلمانانو سره خواخوږي اوهمدردي وښيې هغوئ په ډېره بې شرمانه توګه دنوي فرعون ( سيسي ) په پلوۍ دافتوا صادره کړي چې دهغه په لاسو زرګونه شهيدان شوي مظلوم مسلمانان ترهګردي !

هغوئ په ډېره بيشرمۍ دجنرال سيسي دکړو وړو څخه نه يوائې ملاتړ اعلان کړ بلکې ښکاره يې داکرغيږن هوډ هم ښودلی که په مصر باندې له بيرون څخه مرستې بندې شوي دوئ به سيسي ته هرډول مرسته اوکومک ورسوي.

ددې تش په نامه اسلامي هېوادو واکمن دامريکا په محبت کې ښه ډېر مشهوردي ، مسلمانانو ترې دا تمه نه درلوده چې هغوئ به دامريکا په اشاره شوي ظالمانه کودتا وغندي ، خو ددومره بزدلانا اومکروه دريځ څرګندولو توقع يې هم نه کوله چې په دومره سپين سترګۍ مخامخ هغو بې دفاع اومظلومو مسلمانانو ته دترهګرونسبت وکړي چا چې په سوله يز ډول دخپلو روا غوښتنو لپاره احتجاج کا وه او دهغوئ په څېر دنورو خلکو دوژلو لپاره دسيسي ملعون ملا تړ اعلانوي ، له دې امله نړۍ کې دهر مسلمان سر له ډېره شرمه ټيټ شوی

دومره مردود جسارت خو تراوسه دامريکا اواسرايل لخوا هم ندی شوی چې په سوله يز شکل دخپلو روا غوښتنو لپاره احتجاج کوونکو ته دي ترهګر وواييي !

ترهګر خو دمصر نوی فرعون سيسي دی ، چې دبې دفاع مسلمانانو په سرونو يې ټانکونه وګرځول ، په زرګونو ميرمني ،سپين ږيري اوکوچنيان په مرميو غلبيل غلبيل کړل

هو !دمنځني ختيځ شاهي رژيمونه له دې څخه ډار اواندېښنه لري چې دنړۍ پهمسلمانانو کې چې کومه نوی بيداري راټوکيدلي هسې نه هغه دومره غځوني وکړي چې آن ددوئ تر ديوالو يې څپه ورسي اوددوئ دشاهي واکمنيودسقوط لامل شي ، دې انديښنيوته په پام هغوئ کوښښ کوي چې دمصر څخه راپورته دبدلون اوانقلاب څپه هم هلته کراره اوکينوي دغه وجه ده چې دملعون سيسي ترشا کفري او اسلامي هېوادونه کلک ولاړدي ، سيسي دهغوئ په خوښه اورضا ديوه داسي حکومت په رنګولو لاس پورې کړ چې هغه دمصر ي ولس استازی حکومت و ، ترشا يې دمصري ولس غوڅ اکثريت ولاړ و ، داحقيقت کرار ،کرار ظهور مومي چې دامريکا اواسرائل دکډ سازش په نتيجه کې داخوان حکومت په ضد کودتاشوي

اوولسمشر مرسي دزندان دتورو تمبو ترشا ليږل شوی

بل جوته شوه چې ديمکراسي يوغولونکی اومردود شعار دی ، نړۍ کې له سره ديمکراسي څنګه چې تبليغ کېږي شتون نلري ، بلکې دا دزوراکوللخوا دمظلومو دغلامولو يوه شومه دسيسه ده چې په دې پلمه امريکا اونور کفري هېوادونه ځانوته په نورو خپلواکو هېوادو دبربنډي لاسوهنې چانس برابروي .

ولې که غرب چې په سر کې يې ستر ښکېلاک امريکا ده په رښتيا هم دولسونو داکثريت اراوو ته ارزښت ورکولی نوبيا ولې دمصر دهغه قانوني حکومت باندې دشوي ظالمانه کودتا په وړاندې چوپ پاتې شول ؟ ولې سيسي يې محکوم نکړ ؟ ولې يې ورسره دديبلوماتيکواړيکو پريکون ونکړ ؟ ولې سيسي ته هرډول سياسي پوځې ،اومالي مرستي ورکوي ؟ دادمسلمانانو دپوهاوي لپاره کفايت لري بايد پو شي چې ديمکراسي هيڅ حقيقت نلري ، دولسونو داکثريت اراوو ته ددرناوي اواحترام شعار درواغ دی ، دنړۍ هيڅ يوهېواد کې هم دزورواک اقليت په مقابل کې بې واکه اکثريت اراوي هيڅ وزن اوارزښت نلري

په مصر کې ديوه داسې حکومت له منځه وړل (چې هغه اسلامي و خوپه نوم ! اوډېر يمکراتيک و) څرګندوي چې امريکا اوغرب ته داسلام نوم هم دزغملو ندی ، هغه يوائې په نوم اسلامي حکومت سې بزداشت نکړای شو او دپوځي کودتا له لارې يې نسکور کړ ، په دې سره دا نړيوال منافقت ښه څرګند شو چې غربيان دوه مخې پاليسي لري ،هغو ته هرځای چې ديمکراسي دخپلو استعماري ګټو په وړاندې مانع کېږي هلته بيا دکتاتور ان پالي ، دهغوئ ترشا دريږي ، دخلکو حقه حقوق تريپښو لاندې کوي ، دزرګونو انسانانو ټولوژنه ورته دمچ وزر اومره هم نه ښکاري هلته بيا دظلم اوجبر په ژبه خبري کوي

دمصر دې تازه وحشتونو وښوده چې سيکولرزم يوه بشريت دښمنه مفکوره ده ، څنګه چې څوکاله وړاندې په همدې مصر کې سيکولريست حسني مبارک واکمن هغه دخپل نامشروع واک دټينګښت لپاره بې شمېره انسانان

داجل کومي ته وليږل ، داوسنې ملعون جنرال سيسي پښان هغه هم دلاريونيانو دځپلو لپاره دهغوئ په سرونو ټانګونه وګرځول ، دزرګونو خلکو سينې يې په مرميو سورۍ سورۍ کړې ،خو کله چې سيکولريستانو دځپلوخارجي بادرانو په اشاره داخوان حکومت په ضد لاريونونه وايستل ، اودهغه دړنګولو غوښتنه يې وکړه ،نونه يې په احتجاج کوونکې مرمۍ وروليې اونه يې دهغوئ په سرونو ټانګونه وخيژول...

ددې باجود هغه حکومت ړنګ کړای شو اويوسيکولر جنرال په واک قبضه وکړه ، هغه همداسې څوک چې ديوي يهودۍ ځوی دی ، اوله اسرائل سره ښه کلکه دوستانه اړيکي لري ، هغه سملاسي په نوي مصر کې دځپل فرعونيت نوی تور تاريخ وليکه ، سيکولر نړۍ دهغه په ټولو ظلمونو تردې مهاله چوپه خوله ده ، ددې اصلي وجه داده چې هغوئ ګوري چې دظلمونو ښکار اسلام اومسلمانان دي که چېري په مصر کې ددې زرګونه مسلمانانو په ځای يو قبطي عيسوي ووژل شي بيا به دلويديځ انګولا اوغوغا ووينې چې څومره ژربه دهغه وژنه محکوم کړي ، دوژونکو دنيولو اومحاکمه کولو لپاره به ګړندې ګامونه واخلي ميډيا به يونه تم کيدونکې پروګند اوتبليغ شروع کړي ټوله نړۍ به دهغه په سر وښوروي خو که بل پلو زرګونه معصوم مسلمانان په ښکاره وژل کيږي نړيوال يې تماشه کوي هيڅوک دا پوښتنه نکوي چې اخر ولې اوپه کوم جرم؟

نه يواځې مصر کې په مسلمانانو باندې دځپل پوځ له لاسه زمکه سور تنور ده بلکې په بنګال اوبرما کې هم په مسلمانانو دژوند کړۍ تنګه ده ، دبنګله ديش سيکولر صدراعظمې حسينه واجد دځای ديني ګوندونو په ضد په نه بښونکو جنايتونو لاس پورې کړی دی ، امريکا اوغربي نړۍ په کلکه دهغې داسلام ضد پلانونوملاتړ کوي اوله امله يې هغه ستايي.

لنډه داچې داسلام اومسلمانانو په خلاف يوه پراخه پلان شوي چګړه په شدت سره روانه ده ، ديوولسم ستمبروروسته که يولورته کفري لښکروافغانستان کې يواسلامي حکومت ړنګ کړ ، عراق ته صليبي عسکر ننوتل بل پلو ددې سره جوخت په يوشمېر اسلامي هېوادو کې ددوئ معاش خوارو عسکري جنرالانو په مسلمانانو باندې را ايښي اودهغوئ ويني تويوي ، تردې مهاله يوکفرې هېواد لخوا داغږ بورته نشو چې نړۍ کې له مسلمانانو سره ولې ظلم اوناانصافي کيږي او بايد نور پای ته ورسول شي

ددې لويه وجه داده چې دعثماني خلافت له سقوط وروسته کفري چاراواکو دمسلمانانو ترمنځ دوحدت اويووالي روحيه له منځه ويوړه ، مسلمانان په نړيواله سطحه دځپلې لوي سياسي واکمنۍ څخه محروم شول ، يوه متحده اسلامي نړۍ په کوچنيو ،کوچنيو هيوادونو وويشل شوه پکې پردې پال غرب پلوي واکمن کړای شول ، هغوئ دځپلو هېوادو الو په ځای دهغه چا ګټو اوخوشاليو ته لومړيتوب ورکوي چاچې پر دوئ داحسان کړی چې ترواک يې رسولي ،له دې وجې که کفري هېوادونه په کوم اسلامي يرغل وروړي دوئ مجبوردي چې ملاتړيې وکړي دمخالفت په صورت کې دوئ له هغه ترخه عاقبت نه خبردي له کوم سره چې دايران رضاشا مخ شو...

نو اصلي ستونزه پخپله اسلامي نړۍ کې دننه ده څو چې دغه بې ضميره پردي پال په مسلمانانو واکمن وي ترهغې به مسلمانان دکفارو څپيړ خواره وي اوهم به داسې کله په يوه اوکله په بله نيول کيږي او وژل کيږي به خوبيا هم که خدای کول هغه وخت ډېرلرې ندی چې داسلامي نړۍ دننه راپورته دوښتابه څپه ټول امريکاپې پلوي رژيمونه پړمخې نسکور کړي خوپه دې شرط که داسلامي امت ځوان نسل لېږ. خپل مسؤليتونه درک کړل ؟ داغيارو دغلامۍ نه ووتل اوپه کلک عزم يې دځپل راتلونکې نجات پريکړه اوتصميم ګيري وکړه سره يوغږ. اويو موټی شول ....

# د کوم ګوز اروو چې امریکایانو ۷۰۰ اډې تخلیه کړې ؟

خلیل الله

دناټو وياند جنرال هاينس فيلدمن ،له پژواک اژانس سره دزمرى دمياشتي په ۲۸ په کابل ويلي چې دخارجي قواوو ۹۰ سلنه اډې په افغانستان کې تخليه شوي ، چې اکثره يې ويجاړې اوکم شميرېې دکابل رژيم قواووته په واک کې ورکړل شوي .

هغه که څه هم داډوويجاړول دکابل رژيم دتقويي نښه وبلله چې امنيتي اوجنګي خلا دوى ډکه کړې اوپېره اړتيانه ليدل کيږي چې دناټولښکري په ګډوعملياتو کې برخه واخلي ، خو دغه بې حافظي ويندوى دمرکي په بل ځاى کې په خپله خبره پښې بړدي اووايي : لويي اډې ځکه نړوي اوخپلې درنې وسلې رژيم ته په واک کې نه ورکوي چې لاهم دملي اردو څواک اوچمتوالي په هغه اندازه کې نه ليدل کيږي چې بشپړباوروباندي وشي ، ځکه داويره شته چې طالبان به دغه اډې دخارجي قواووپه نه شتون کې د ملي اردوله لاسه وباسي اوکيداى شي وسلې طالبانوته په لاس ورشي !!!

جنرال هاينس فيلدمن ، دخبروپه مهال داراز هم رالوڅ کړ چې دوى لدې امله ۷۰۰ اډې تخليه اوله منځه يوړې چې دکابل رژيم کې دومره مالي وسه اوځواک نشته چې هغوي په خپلو تاسيساتو اومراکزوسربيره امريکايي اډې او جوړشوي تاسيسات هم کنترول اواکمال کړى شي ، ياني دده له خبروثابته شوه چې امريکايان په هيڅ بيه تيار ندي چې حتى په امنيتي اوپوځي برخو کې هم لدې ورسته درژيم تشه ډکه اونقدي مرسته هم وکړي .

له بل لورى دکابل واکمنو اوپارلمان کومي وشليدل چې او امريکايانو ! ګورى داسې مکوى ، ياخواول اډې مه ويجاړوى مونږ ته يې وسپارى اوکه فرضاويجاړوى يې اوزړه مو طاقت نکوي نوهغه وسلې خو مونږ ته راکړي اوکه وسلې نه راکوى اوفکر کوى چې طالبان به يې بياراڅخه ونيسي نوداتجهيزات اووسايط خوراته وسپارى اوکه موددغوټولومستحق نه ګڼې پروانکوي بادران مويي !! خوهغه کباړاوله ستاسي له کارلويدلي اجناس خوراباندې ولوروى ؛

ولې امريکايانو ددوى دغه يوه سوال اومنت ته هم ارزښت ورنکړ اډې يې ويجاړې ، وسلې اومهم وسايط يې ګريس بند اوپه کانټينرونو کې مهرولاک کړل اوکباړ سامانونه يې ياويلي اوله ځاى په ځاى له منځه يوړل اوياېې هم په خارجي شرکتو وپلورلو تر څوله افغانستان څخه يې وباسي ، مطلب داچې امريکايان چمتوندى څوخپلو ګوډاګيانوته دخپلو وسايلو اوفضله جاتو هغه خاوري اوايري اوتش بوتلونه هم په اختيار کې ورکړي !!!؟

دکابل ددفاع وزارت وياندعظيمي هم تيره اونۍ له طلوع سره په مرکه کې سخته ګيله وکړه چې امريکايان لدوى سره ناځواني کوي دده په خبره حتى کومه اډه چې هغوى تخليه کوي دملي دفاع وزارت ته يوراپور قدرى هم نه ورکوي ، بلکې ډيرې آډې داسې تخليه شوي چې سهاروي اوبيګاه نه وي !

خو دامريکايانو ددغې وارخطااوعاجلي تخليې اصلي وجه او لامل که څه هم هرچاته لکه لمرښکاره اوثابت دى چې په دريو څلورمياشتوکې د۸۰۰ مجموعي اډوڅخه ولې ۷۰۰ اډې په دومره بيړنې ډول دوى وراني اوله منځه يووړې چې هغه له شک پرته دمجاهدينو اوفدايي اتلانو دتوري شرنګ اودخالدبن وليد دمبارکو عملياتو تکتيکونه وو چې دامريکاملايې ماته او رنځاورځ يې پرې توره شپه کړه ، خوپه هغه سربيره دنيوزويک امريکايي مجلې هم په دې ورستيوکې يوې مهمې خبري ته اشاره کړي اوويلي دي چې (د پنتاګون ، سى اى اې اودسپيني ماڼۍ ) ګډه پريکړه داده چې له ۲۰۱۴ کال وړاندې بايد امريکايي قواوي له افغانستان څخه ارومرورااوويستل شي ، دوى درى واړه دې نتيجې ته رسيدلي چې افغان ولس دکابل دواکمن رژيم اودهغه دسياسي اپوزيسون ( ټلوالې ) په نسبت طالبانو ته ډيرارزښت ورکوي اوطالبان نورله هغې مرحلي وتلي چې دکومي پوځي ستراتيژۍ په نتيجه کې دې شکست ووينې اويادې کمزوري شي ، همدغه علت دى چې امريکايانو تصميم نيولى وړاندې تردې چې دتباهي په دايمي لومه کې بندپاتې شي اوهسې خوشې په ملياردونو ډالرنورويلي کړي اودرنه مرګ ژوبله ووينې ، نجات په همدې کې ځاى کې دى چې له افغانستان څخه پښې راسپکې اوملي اردواواربکيان ترهغو چې ددوى ټولي قواوي راباسي دمرګ کومي ته وغورځوي .

# بدگمانی مرضی مهلک و خطرناک

**مولانا محمدحنیف قاسمی**
مترجم
**عبدالهادی سیدزاده**

بدگمانی بر خدا و بندگانش جرمی سنگین و عملی ناپسند است. از دیدگاه قرآن عاقبت و انجام آن تباهی و خسران است. ریشه ی این جرم در حقیقت فریب نفس، تحقیر دیگران و عیب جویی است و با اوّلین معصیت شیطان نزدیک تر است که اساس آن تکبر و غرور بود. خودپسندی و خودفریبی، خیانت و فریب کاری از آن جنایات مهلکی هستند که در حدیث نبوی به آن اشاره شده است» : **ثلاث مهلکات: شح مطاع، و هوی متبع، و إعجاب المرء بنفسه)** «.صحیح الجامع الصغیر : ۳۰۴۲)؛ سه چیز از اسباب هلاکت هستند:

۱ – بخلی که انسان مطیع آن باشد،

۲ – خواهشی که انسان تابع آن باشد،

۳ – غرور و خودنمایی انسان.

بنابراین بر هر مسلمانی لازم است از هر پست و مقام والا و شأن و شوکت رفیعی که باشد، پایین آمده و در جلوی مردم متواضعانه رفتار نماید. عینک سیاه خویش را در آورده و در میان بندگان خدا در تلاش خیره رستگاری و بهبودی فریضه ی خویش را ادا کند. حسن ظن را بر سوء ظن و برائت را بر تهمت ترجیح داده و با مردم چنان اخلاق و برخوردی داشته باشد که آن مناسب با شأن یک انسان باشد. آن ها بنابر تقاضای بشری می خورند و می نوشند و در بازار رفت و آمد دارند. انسان مخلوقی آسمانی یا فرشته نیست؛ خلقت او نه از نور است و نه از نار؛ بلکه از همین خاک» **من حمإ مسنون** «آفریده شده است. لذا این اصل فراموش نشود که در ما در مورد هیچ شخصی فقط بر ظاهر آن مجاز به قضاوت نیستیم. مسؤولیت باطن و اسرار دیگر به عهده ی خداوند هستند. برای تفتیش و تحقیق ما مسؤول پاره کردن گریبان و دل های مردم نیستیم، بلکه قلب ها را سپرد و حواله ی رازدار قلب ها و علام الغیوب بکنیم.



در این چهارچوب بر مردم احکام اسلام را اجرا نماییم. ما می دانیم که در میان این ها مسافر و معذور وجود دارد و گاهی از مسافر و معذور ظاهراً کاری که خلاف دینداری و شرع باشد، دیده می شود؛ لذا ما نباید بدون آگاهی به ظاهر حکم و قضاوت کرده بد گمان باشیم. هیچ مؤمنی از خیر خالی نیست گرچه ظاهر آن در منجلاب شر و معصیت فرو رفته باشد. معصیت خباثت و گَندگی است؛ مثال آن مانند آب قلتَین است که در آن احتمال ناپاکی باقی نمی ماند. همین‌طور انسانی که در شر و معصیت مبتلاست، اما خیر و خوبی هم در وجود او باشد، پس خیر و خوبی بر شرّ غالب می آید؛ «إن الحسنات یذهبن السیئات». نگاه ما باید بر مردم همانند نگاه دکتری شفیق و دلسوز نسبت به مریض باشد نه مانند نگاه یک پلیس بر مجرم! چه بسا مردم در رتبه و مقام از ما بالاتر اند.

از زندگی عملی و از درجات آن ها خداوند به خوبی واقف است. در میان اولیاء الله نیز از حیث مادی و معنوی سلسله مراتبی وجود دارد؛ بعضی غنی و بعضی فقیر، بعضی عالم و بعضی عابد هستند. هر گاه با دیگران نسبت به مسأله ای اختلاف نظر پیدا شود، پس آن نگاه مغرض و ناراض فقط بدی ها و خامی ها را می بیند و بس. علما می فرمایند: سعادت و خوشبختی انسان در این است که بر عیب های خویش نظر داشته و در پی اصلاح آنان باشد و هر کسی این‌طور عمل کند، قطعاً فرصتی برای عیب جویی و عیب گویی دیگران نمی یابد.

]هر زمان و هر لحظه که انسان کاملاً در اسلام دربیاید و قوانین و فرامین قرآن و سنت نبوی علیه السلام را اسوه و الگوی خود قرار داده و آن ها را در قلب خود جایگزین نماید، یقینا قلب او دیگر جایی برای هیچ گونه کراهت و بد گمانی پیدا نمی کند؛ چون شعار قرآن و سنت همیشه این بوده و هست که» : **إذا جاء کم فاسق بنبأ فتبینوا«، و» ظنوا بالمؤمنین خیرا .«بلکه خداوند متعال** خیلی دقیق و با ظرافت تمام، بر اعمال انسان ها نظارت و بدون کمی و کاستی مطابق اعمالشان با آن ها معامله می کند و نسبت به هیچ کسی بد گمان نیست.

همین‌طور رسول خدا- علیه السلام- با ذکاوت و فراست به امت نظر داشته و به کسی بد گمان نبود. تجربه نشان داده و تاریخ گواه است که بد گمانی در میان ملت ها و اقوام، زن و مرد، علما و آحاد بشریت هیچ گاه مسالمت و اصلاح به ارمغان نیاورده است، بلکه چه آشوب و فتنه هایی در میان آنان به پا کرده است که این جنایت عظیمی علیه بشریت و گناهی بسیار بزرگ است که اتحاد و همدلی مسلمین را بر هم می زند. چون وقتی که همه‌ی مسلمان ها بر یک‌دیگر بد گمان باشند، پس چگونه خدمت دین را انجام می دهند.

بر ماست که هیچ موقع هم چون اهل الظواهر نباشیم و بر ظاهر بندگان الهی حکم و فیصله ننماییم و در مورد هیچ کسی چنین فکر نکنیم و علم الیقین نداشته باشیم که چون ظاهر یکی است پس صد در صد باطنش نیز چنین است؛ بلکه همیشه «إن أکرمکم عندالله أتقیکم» را معیار قرار دهیم. از پروردگار عالم، این امید را دارم که ما را بر منهج قرآن و سنّت و راه صحابه خادمان دین و سلف صالح استوار بگرداند و دل های ما را پاک و صاف نگه‌دارد[.

# اهل سنت والجماعت

# یاناجیه فرقه

دویمه برخه

مفتي شاهد حقاني

لکه څنګه چې موپه تېربحث ورته نغوته وکړه، چې نن سبا دفتنوپدې بحراني دورکې محققین علماء په خپل اغلب اطلاق سره د(اهل السنة والجماعة )مصداق دڅلورګونومذاهبو پیروان بولي اوددې نه هم انکارنکوي چې هغه څوک هم(اهل السنة والجماعة )کیدای شي چې دسلفوصالحینوعقایدوته درناوی لري اودحضرت (مولیناغرغشتورحمه الله) پر وینا هغه څوک (اهل سنت والجماعت )دي چې (سب سلف )نکوي ،یعنې اسلافوپسې بد رد نه وایې اونه یې مسلوکې طریقې له سنتوخلاف بولې.

کتل کیږي چې دمعاصرې نړۍ داهل سنتوغوڅ اکثریت چې هغوئ دمذاهب اربعه تر بیرغ لاندې راغونډ دي، دعقایدوپه علم کې ددوونامتو امامانو تر سیورې لاندې راټول شوي ،چې یو (امام ابوالحسن اشعری رح) دی اوبل ( امام ابومنصورماتریدی رح ) دی ،دعلم عقاید دپوهانو دپخوانیوخیړنوله مخې دشام ،عراق او خرسان خلک دامام ابوالحسن اشعری رح پیروان اودهند ،پاکستان ،افغانستان په ګډون د ماوراءالنهر ولسونه چې غوڅ اکثریت یې احناف دي ،دامام ابومنصورماتریدي رح پیروان دي ،یاپه بل عبارت ددرې ګونومذاهبوپیروان زیات( اشاعره )اودامام ابوحنیفه رح دمذهب زیات پیروان( ماتریدیه ) دي ،چې دوئ

دسلفوصالحینواوصحابووعقاید خپل کړي اوخپل ځان لدې امله اهل السنت والجماعت بولي ،خوله بده مرغه چې په همدغواقالیموکې نورداسې خلک هم شته چې سلفو صالحینو او مخصوصا درسول الله صلی الله علیه وسلم ځینې راشدینوخلفاووته (العیاذبالله ) مبتدعین وایې ،دهغوئ سنت اونیکې طریقې خلاف سنت معرفي کوي اوپه ډېره سپین سترګۍ ورته بدعت وایې ،داکارپه څومعلومومسئلوکې کوي ،لکه دجمعې په ورځ ددوهم اذان پیلول ، رمضان المبارک کې دتراویحود تجمع مسئله ،طلقات ثلاثه مغلظه واقع کیدل ،... اوداسې نورمحدود مسائل ،ددې لپاره چې داحادیثود متونواوشروحوپه مستنده حواله مو دې ډول خلکوته ځواب موندلی وي ،سندا اومتنا به ورته دشبهې دازالې په پار دمنل شویو کتابونو حوالې ،منقول دلایل له خلصې پښتوترجمې او لنډې شرحې سره رانقل کړو ،ځکه همدوئ خلفاء رضوان الله عنهم اجمعین دي چې درسول الله صلی الله علیه وسلم ننګه یې کړي او داسلام دین یې دخپلو وینو په بیه مونږته رارسولی ،دسپین زړومحسنانو په بنه یې پرامت حق دی چې دفاع ترې وکړي اوپه باب یې شکوک ځواب کړي.

.صحابه کرام او مخصوصا خلفای راشدین رض هغه څوک دي چې د اسلام مبارک دین یې شرق او غرب پورې ورساوه او د عربو او عجمو وچې د ښتې یې په خپلو سپیڅلو وینو سیراب کړې، خو بیا یې هم ځینې خلک پر احسانا تو معترف ندي، اهل تشیع خو هسې هم د ځینو صحابو و دښمنان دي خو هغه څوک چې ځانته اهل سنت والجماعت وایي بیا هم ترې د اسې خبرې اوریدل ډیرې هیښونکي وي، څرګنده ده چې هغه څوک به د اهل سنت والجماعت تر تعریف لاندې راځي چې د خلفای راشدینو رضوان الله تعالی عنهم اجمعین افعال بدعت نه ،بلکې سنت او ددوئ چاروته ددې نبوي صلی الله تعالی علیه وسلم ارشاد اتوله امله سنت وایې چې فرمایي((حدیث العرباض بن سارية - رضي الله عنه - قالَ: وعظنا رسول الله - صلى الله عليه وسلم - مَوعظةً وَجلتْ منها القُلُوبُ ، وذرِفت منها العُيُونُ. وقد سبق في باب النهي عن البدع. لفظ الحديث: «وعظنا رسول الله - صلى الله عليه وسلم - موعظة ذرفت منها العيون ، ووجلت منها القلوب ، فقلنا : يا رسول الله ، كأنها موعظة مودع فأوصنا ، قال: «أوصيكم بتقوى الله ، والسمع والطاعة ، وإن تأمر عليكم عبد حبشي ، فإنه من يعش منكم فسيرى اختلافًا كثيرًا ، عليكم بسنّتي وسنّة الخلفاء الراشدين من بعدي ، تمسكوا بها وعضّوا عليها بالنواجذ ، وإياكم ومحدثات الأمور ، فإن كل محدثة بدعة» .(تطريز رياض الصالحين).

لنډه ژباړه: عرباض بن ساریه رض وایې چې مونږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې وعظ وکړ، چې له امله یې زړونه وویریدل او سترګې یې وبهولې، نو مونږ ورته وویل چې ای د الله ج رسوله ! ګویا دادې وداعې یا وروستی وعظ دی، نو مونږته وصیت وکړه ! نو هغه وفرمایل: چې زه تاسو ته وصیت کوم :د الله ج څخه په ویره، د خپل مشر په سمع او اطاعت، اګر که په تاسو یو حبشي مری مشرو ټاکل شي ،پس یقینا چې څوک تاسو کې ژوندی پاتې شو نو ډیر اختلاف به وګوري، پر تاسو زما د سنتو التزام لازم دی او زمانه پس د خلفای راشدینو، پر هغې کلکې منګولې ولګوئ او پر نواجذو غاښونو (هغه چې د خولې په پای کې وي او غښتلي وي) یې ونیسئ، او تاسو د محدثو (دین کې نویو کارونو) نه ځانونه وساتئ، ځکه هر نوی کار په دین کې بدعت وي. دې حدیث کې د خلفای راشدینو افعالو ته سنت وویل شول او امت یې په پیروی مکلف شو.

وقال النبي عليه السلام: عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين. (الموطأ بروايتين )/ژباړه: رسول الله صلی علیه وسلم فرمایې چې پر تاسو باندې زما سنت او زما د خلفای راشدینو سنت لازم دي /دې پورتنو دواړو مرفوع احادیثو کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ځای ناستو یا خلفاوو سنت پر مسلمانانو لازم وګرځول شول، د دوئ طریقو او تګلاروته د سنت نوم ورکړل شو او واجب الاتباع وګرځول شول، دې وروستې حدیث شریف کې هم همدا مفهوم د څه نور اضافه والې سره تشریح کیږي.

دجمعې دورځې د دوهم اذان په هکله ددې لاندیني روایت نه په ډاګه څرګندیږي چې دا سنت دی او که څوک ورته بدعت وایې له حدیث سره به یې خبره متصادم وي:

قوله (عن السائب بن يزيد ) بن سعيد بن ثمامة الكندي وقيل غير ذلک في نسبه ويعرف بابن أخت النمر صحابي صغير له أحاديث قليلة وحج به في حجة الوداع وهو ابن سبع سنين وولاه عمر سوق المدينة سنة **19** إحدى وتسعين وقيل قبل ذلک وهو آخر من مات بالمدينة من الصحابة قوله (كان الأذان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبي بكر وعمر إذا خرج الإمام ) أي للخطبة وجلس على المنبر (أقيمت الصلاة ) كذا في النسخ المطبوعة في الهند وقد ذكر أبو بكر ابن العربي في عارضة الأحوذي هذا الحديث بلفظ وإذا أقيمت الصلاة وهو الصحيح وكذلک وقع في رواية أبي عامر عن ابن أبي ذئب عند ابن خزيمة إذا خرج الإمام وإذا أقيمت الصلاة وكذا للبيهقي من طريق ابن أبي فديک عن ابن أبي ذئب كذا في الفتح والمعنى كان الأذان في العهد النبوي وعهد أبي بكر وعمر أذانين أحدهما حين خروج الإمام

وجلوسه على المنبر والثاني حين إقامة الصلاة فكان في عهدهم الأذانان فقط ولم يكن الأذان الثالث والمراد بالأذانين الأذان الحقيقي والإقامة وفي رواية وكيع عن ابن أبي ذئب عند ابن خزيمة كان الأذان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم وأبي بكر وعمر أذانين يوم الجمعة قال ابن خزيمة قوله أذانين يريد الأذان والإقامة يعني تغليبا أو لاشتراكهما في الإعلام كذا في فتح الباري (فلما كان عثمان) أي خلافته أو كان خليفة (زاد النداء الثالث) قال الحافظ في رواية وكيع عن ابن أبي ذئب فأمر عثمان بالأذان الأول ونحوه للشافعي من هذا الوجه ولا منافاة بينهما لأنه باعتبار كونه مزيدا يسمى ثالثا وباعتبار كونه جعل مقدما على الأذان والإقامة يسمى أولا ووقع في رواية أن التأذين بالثاني أمر به عثمان وتسميته ثانيا أيضا متوجه بالنظر إلى الأذان الحقيقي لا الإقامة (على الزوراء) بفتح الزوراء موضع بالسوق بالمدينة قال الحافظ ما فسر به البخاري هو المعتمد وجزم ابن بطال بأنه حجر كبير عند باب المسجد وفيه نظر لما في رواية ابن اسحاق عن الزهري عند ابن خزيمة وابن ماجه بلفظ زاد النداء الثالث على دار في السوق يقال لها الزوراء وفي روايته عند الطبراني فأمر بالنداء الأول على دار له يقال لها الزوراء فكان يؤذن له عليها وفي رواية له من هذا الوجه فأذن بالزوراء قبل خروجه ليعلم الناس أن الجمعة قد حضرت كذا في الفتح وفيه أيضا زاد أبو عامر يعني ابن خزيمة عن ابن أبي ذئب فثبت ذلک حتى الساعة وفي رواية يونس يعني عند البخاري بلفظ فثبت الأمر كذلک والذي يظهر أن الناس أخذوا بفعل عثمان في جميع البلاد إذ ذاک لكونه خليفة مطاع الأمر لكن ذكر الفاكهاني أن أول من أحدث الأذان الأول بمكة الحجاج وبالبصرة زياد وبلغني أن أهل المغرب الأدنى الان لا تأذين عندهم سوى مرة وروى ابن أبي شيبة من طريق ابن عمر قال الأذان الأول يوم الجمعة بدعة فيحتمل أن يكون قال ذلک على سبيل الانكار ويحتمل أنه يريد أنه لم يكن في زمن النبي صلى الله عليه وسلم وكل ما لم يكن في زمنه يسمى بدعة لكن منها ما يكون حسنا ومنها ما يكون بخلاف ذلک وتبين بما مضى أن عثمان أحدثه لإعلام الناس بدخول وقت الصلاة قياسا على بقية الصلوات فألحق الجمعة بها وأبقى خصوصيتها بالأذان بين يدي الخطيب انتهى تنبيه قال بعض الحنفية الأذان الثالث الذي هو الأول وجودا إذا كانت مشروعيته باجتهاد عثمان وموافقة سائر الصحابة له بالسكوت وعدم الإنكار صار أمرا مسنونا نظرا إلى قوله صلى الله عليه وسلم عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين انتهى قلت ليس المراد بسنة الخلفاء الراشدين إلا طريقتهم الموافقة لطريقته صلى الله عليه وسلم قال القاري في المرقاة فعليكم بسنتي أي بطريقتي الثابتة عني واجبا أو مندوبا وسنة الخلفاء الراشدين فإنهم لم يعملوا إلا بسنتي فالإضافة إليهم إما صاحب سبل السلام أما حديث عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين بعدي تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ أخرجه أحمد وأبو داود وابن ماجه والترمذي وصححه الحاكم وقال على شرط الشيخين ومثله حديث اقتدوا باللذين من بعدي أبي بكر وعمر أخرجه الترمذي وقال حسن وأخرجه أحمد وابن ماجه وابن حبان وله طريق فيها مقال إلا أنه يقوي بعضها بعضا فإنه ليس المراد بسنة الخلفاء الراشدين إلا طريقتهم الموافقة لطريقته صلى الله عليه وسلم

(تحفةالاحوذی لمحمد المباركفوری )

/ لنډه ژباړه او خلص مفهوم: سائب بن يزيد رضی الله عنه چې خورا کوچنی صحابي او په اووکلنۍ کې يې حجة الوداع کړی او بيا ترټولو روستی صحابي دی چې وفات شوی ،فرمايي چې په نبوي دور ،دابوبکرصديق رض او عمررض دخلافت په پيرکې به دوه اذانونه کيدل ،يو پرمنبر دخطبې پروخت او بل اقامت (تغليبا ورته اذان وويل شو )وروسته دعثمان رض په دورخلافت کې دريم اذان دخلکو داعلان لپاره (لومړی اذان )و شو اوددې اذان امريې وکړچې په (الزوراء) وشو ،دا(الزوراء) يادمدينې منورې بازارکې دکوم ځای نوم دی ،دبخاري په روايت دمسجدنبوي ص مخکې يوه ستره تيږه ده ،يادمدينې بازارکې دکوم کورنوم دی ،ياداچې دده دخپل کورنوم الزوراء دی.چې دا به ترقيامته

پوري وي، په (تحفة الاحوذي) کې (محمد مبارکپوري) ليکي: چې ځينې احناف وايې چې دادريم اذان دعثمان رض په اجتهاد پيل شوا و نورو صحابوو پرې دموافقت له امله چوپتيا غوره کړه او کوم ډول انکارېې پرې ونکړ، نو دادې حديث شريف ته په کتو يومسنون عمل وګرځيد، ((عليکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين))، دبخاري شريف په روايت همدا امرثابت پاتې شو، ترقيامته پورې به دامسنون عمل پاتې وي، که څه هم دفاکهې درروايت له مخې دادريم اذان مکه کې حجاج او مدينه کې زياد) پيل کړی ((خوداکمزوری روايت دی)) په عثماني دروخلافت کې دادريم چې لومړی اذان دی شروع شوی او ترقيامته پورې به پاتې وي، ځکه حضرت عثمان رضی الله عنه خليفه مطاع اوحکم يې ټولوته دمنلو وو، نودابه دسنت په ډول پاتې وي، هو ابن عمررضی الله عنه دې دريم اذان ته بدعت ويلی خو جواب يې دادی چې داپه نبوي ص دروکې نه و، نوځکه ورته نومورې دبدعت کلمه کارولې، ياهم دبدعت نه دلته بدعت حسنه مراد دی نه سيئه، اودامذموم نوي بلکې ممدوح وي.

دالعرف الشذی عبارت داسې دی چې:

المشهور أن الأذان في عهده عليه الصلاة والسلام كان واحداً وخارج المسجد عند الشروع في الخطبة ، وكذلك في عهد الشيخين ، ثم قرر عثمان أذاناً آخر قبل الشروع في الخطبة خارج المسجد على الزوراء حين كثر المسلمون ، والزوراء قيل: حجر ، وقيل: سوق ، وقيل: بناء ، وهذا الأذان كان قبل الأذان بين يدي الخطيب بعد الزوال ، فانتقل الأذان الذي كان في عهده عليه الصلاة والسلام إلى داخل المسجد ، هذا هو الصحيح ، وفي فتح الباري ما يدل على أن هذا الأذان شرع في عهده عليه الصلاة والسلام واشتهر في عهد عثمان ، وفيه ما يدل على أن هذا الأذان من عهد عمر ، وبعضها تدل على أن الإضافة هذه من أمراء بني أمية ، ولكن هذه كلها ضعاف ، ثم الأذان الثاني وإن حدث في عهد عثمان ولكنه لا يقال بأنه بدعة - عياذاً بالله - فإنه من مجتهدات عثمان ، وأما وجه الاجتهاد فظاهر على مذهب الشافعي فإنه صرح بجواز تكرار الأذان لصلاة واحدة ولو أربع مرات عند الضرورة ، وأما على مذهب الأحناف فيقال: أولاً إن التكرار مشروع للضرورة مثل التكرار في الفجر ، فإنه كان أحدهما للتسحير ، كما صرح محمد في كتاب الحجج بأن الأول كان للتسحير ، وأيضاً في الحديث: < عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين.. إلخ > وفي شرح هذا الحديث قولان ، قيل: إن سنة الخلفاء والطريقة المسلوكة عنهم أيضاً سنة وليس ببدعة ، وقيل: إن سنة الخلفاء في الواقع سنة النبي - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وإنما ظهرت على أيديهم ، ويمكن لنا أن نقول: إن الخلفاء الراشدين مجازون في إجراء المصالح المرسلة ، وهذه المرتبة فوق مرتبة الاجتهاد ، وتحت مرتبة التشريع ، والمصالح المرسلة: الحكم على اعتبار علة لم يثبت اعتبارها من الشارع ، وهذا جائز للخلفاء الراشدين لا للمجتهدين ، وزعم البعض أن الخلفاء الراشدين ليس لهم إلا ما للمجتهدين ، وهذا غير صحيح ، وبعض مسائل أبي حنيفة تدل على أن لهم مساغ إجراء المصالح المرسلة ، وعض عليها بالنواجذ :

منها ما اعتبر الدرهم السبعي ، والحال أنه ليس عنه عليه الصلاة والسلام ، وفيه تبديل حكمه عليه الصلاة والسلام ظاهراً وليس هاهنا وجه الاجتهاد ظاهراً ، وكان الدرهم في عهده عليه الصلاة والسلام درهماً تكون عشرة منها قدر عشرة مثاقيل ، ودرهماً تكون عشرة منها قدر ستة مثاقيل ، ودرهماً تكون عشرة منها قدر خمسة مثاقيل ، ثم اختلف العاملون والمتصدقون في عهد عمر ، فقال عمر: يجمع عشرة وستة وخمسة فيحصل إحدى وعشرون ، ثم يؤخذ الثلث أي السبعة ، فقدر الدرهم الذي تكون عشرة منها قدر سبعة مثاقيل ، فاعتبر أبو حنيفة الدرهم السبعي في الزكاة ، وهذا المذكور موجود في كتبنا .(العرف الشذی للكشميری) ج۲/ص۲۹

لنډه ژباړه او خلص مفهوم: هغه چې مشهوره ده ،هغه داده چې په نبوي صلی الله عليه وسلم دوريا عهد کې يو اذان وو ،چې دجومات نه به بهر دخطبې دشروع کيدو پروخت ويل کيده

،همدالړۍ ددواړولو مړنیو شیخینو رض په دور خلافت کې هم روانه وه ،دریم خلیفه عثمان رضی الله عنه دخلکو ډیروالي له کبله دوهم اذان مقرر کړ، چې دنبوي صلی الله علیه وسلم د دور اذان دننه جومات ته ننوت ، اودادوهم اذان دجومات نه بهرپاتې شو ،همدا تحقیق سم او پرځای دی ،فتح الباری لیکلې چې دا اذان په نبوي صلی الله علیه وسلم دورکې هم و ،خو دعثمان رضی الله عنه په وخت کې مشهورشو ،نورروایې چې دااذان دعمررضی الله عنه په وخت هم و ،نوربیا وایې چې دادوهم اذان دبني امیه ووپه دورکې و ،خودا ټولې کمزورې خبرې دي ،که څه هم دا دوهم اذان دعثمان رضی الله خلافت کې راپیدا شوی ،خوهیڅوک دې ته بدعت نشي ویلی (العیاذبالله ) ،بلکې دادعثمان رضی الله عنه له مجتهداتو څخه دی ،دشوافعو په نزدیې دا اجتهاد وجه څرګنده ده، چې دوئ دیوه لمانځه لپاره آن ترڅلورو اذانو نوپورې هم روا وایې ،او احناف داذان تکرار دضرورت په اساس روا بولې ،لکه دپیشنمي او سهار دوه اذانونه.

اودې حدیث کې (( علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین ... ) )دخلفاوو له سنتونه مراد یا پخپله ددوئ مسلوکه طریقه او سنت دي ،یا ترې درسول الله صلی الله علیه وسلم هغه سنت دي ،چې دخلفاوو په لاس ښکاره شوي وي ،خوددې شونتیا شته ،چې مونږ وایو چې خلفاء په مصالحو مرسله ووکې مجاز دي چې اجرآت وکړي ،اومرسله مصالح هغه حکم دی چې په اعتبار دعلت سره وي خو اعتبار یې له شارع نه نوي راغلی ،دامرتبه له اجتهاد نه فوق اوله تشریع نه تحت یا لاندې ده ،اودامرسله مصالح اجراء کول یوازې دخلفاوو لپاره وي دمجتهد لپاره نوي.

د امام ابوحنیفه ځینې مسایل ښیې چې خلفاوو ته دمرسله مصالحو اجراء جواز لري لکه (الدرهم السبعی )یعنې د درهم مثقالي اندازه ټاکل ،چې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم نه پکې څه نشته او هم ظاهرا پکې دهغه صلی الله علیه وسلم دحکم نقض دی او کوم اجتهادي تومنه هم نلري ،لکه په نبوي صلی الله علیه وسلم پېر کې ،درې دراهم مروج وو ،یو ډول داسې درهم و ،چې لس دراهم یې دلسو مثقالو په اندازه وو ،بل قسم داسې دراهم وو ،چې لس دراهم یې دشپږو مثقالو په اندازه برابر وو ،بل قسم داسې وو ،چې لس دراهم یې دپنځو مثقالو په اندازه کېدل ،ددوهم خلیفه په وخت کې دمتصدقینو او عاملینو ترمنځ اختلاف پیدا شو ،نو عمر رضی الله عنه پریکړه داسې وکړه چې دا ټول عددونه دې سره جمع شي ،نو یوویشت به ترې جوړ شي ،(۱۰+۶+۵=۲۱ )ددې نه پس به ددې دیوویشتو ثلث راواخستل شي ،چې هغه اووه کیږي ،دا به دلسو دراهمو مثقالي اندازه شي ،یعنې دده په فیصله لس دراهم اووه مثقاله کیږي ،نوهمدا اندازه امام ابوحنیفه رح دزکات لپاره وټاکله او همدا (الدرهم السبعی )نن سبا دزکات معیار شو.دلته هم دزکات لپاره یو داسې درهمې معیار ټاکل چې په نبوي ص دورکې نه وه، دبدعت اطلاق پرلویه بې ادبي ده، بلکې دا دمرسله مصالحو دا اجرآتو ترحکم لاندې راځي او خلفای راشدین ترهرچا مخکې په سنتو عالمان وو.

بل دلته دجمعې ددوهم اذان په باب پوره وضاحت وشو ،چې ددریم خلیفه په حکم پیل شوی او دې ته بدعت ویل دصحیح حدیث نه مخالفت دی ،اګرکه ځینې خلک اوس داسې شته چې دادوهم اذان نکوي ،په څرګنده له( عرباض )له صحیح حدیث نه تخلف دی ،باید دوئ خپل ځانونه له دریم خلیفه نه فوق ونه شمیري ،ځکه نن سبا استقرار په همدې دوهم اذان شوی چې تخلف ترې نا مناسب دی.

وَأَمّا حَدِيثُ " عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ بَعْدِي تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ " أَخْرَجَهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُد وَابْنُ مَاجَهْ وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ الْحَاكِمُ وَقَالَ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ وَمِثْلُهُ حَدِيثُ { اقْتَدُوا بِاللَّذَيْنِ مِنْ بَعْدِي أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ } أَخْرَجَهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ حَسَنٌ وَأَخْرَجَهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ وَابْنُ حِبَّانَ وَلَهُ طُرُقٌ فِيهَا مَقَالٌ إلَّا أَنَّهُ يُقَوِّي بَعْضُهَا بَعْضًا فَإِنَّهُ لَيْسَ الْمُرَادُ بِسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ إلَّا طَرِيقَتَهُمْ الْمُوَافِقَةَ لِطَرِيقَتِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جِهَادِ الْأَعْدَاءِ وَتَقْوِيَةِ شَعَائِرِ الدِّينِ وَنَحْوِهَا فَإِنَّ الْحَدِيثَ عَامٌّ لِكُلِّ خَلِيفَةٍ رَاشِدٍ لَا يَخُصُّ الشَّيْخَيْنِ ، وَمَعْلُومٌ مِنْ قَوَاعِدِ الشَّرِيعَةِ أَنْ لَيْسَ لِخَلِيفَةٍ رَاشِدٍ أَنْ يُشَرِّعَ طَرِيقَةً غَيْرَ مَا كَانَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نَفْسُهُ الْخَلِيفَةُ الرَّاشِدُ سَمَّى مَا رَآهُ مِنْ تَجْمِيعِ صَلَاتِهِ لَيَالِيَ رَمَضَانَ بِدْعَةً وَلَمْ يَقُلْ إنَّهَا سُنَّةٌ فَتَأَمَّلْ عَلَى أَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ خَالَفُوا الشَّيْخَيْنِ فِي مَوَاضِعَ وَمَسَائِلَ فَدَلَّ إنَّهُمْ لَمْ يَحْمِلُوا الْحَدِيثَ عَلَى أَنَّ مَا قَالُوهُ وَفَعَلُوهُ حُجَّةٌ وَقَدْ حَقَّقَ الْبِرْمَاوِيُّ الْكَلَامَ فِي شَرْحِ أَلْفِيَّتِهِ فِي أُصُولِ الْفِقْهِ مَعَ أَنَّهُ قَالَ إنَّمَا الْحَدِيثُ الْأَوَّلُ يَدُلُّ أَنَّهُ إذَا اتَّفَقَ الْخُلَفَاءُ الْأَرْبَعَةُ عَلَى قَوْلٍ كَانَ حُجَّةً لَا إذَا انْفَرَدَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ وَالتَّحْقِيقُ أَنَّ الِاقْتِدَاءَ لَيْسَ هُوَ التَّقْلِيدُ بَلْ

هُوَ غَيْرُهُ كَمَا حَقَّقْنَاهُ فِي شَرْحِ نَظْمِ الكَافِلِ فِي بَحْثِ الإِجْمَاعِ. (سبل السلام).

لنډه ترجمه او خلص مفهوم: صاحب د(سبل السلام على بلوغ المرام) دا حديث چې ((عليكم بسنتی وسنة خلفاء الراشدين المهديين من بعدي ......)) حديث راوړی، يعني دا هماغه مخكينی حديث دی، چې دخلفای راشدينو سنت يوه طريقه مسلوكه فی الدين بولي او مسلمانان پرې التزام ته رابلل شوي، يوه بل حديث هم ورسره راوړل شوی، چې دحضرت شيخينو رض په لاربښوونو موالتزام ته رابولي، دواړه پدې شهادت وركوي چې دخلفای راشدينو طريقوته سنت ويل كيږي او پابندي يې ضرورده، خود(بلوغ المرام صاحب) بيادلته ورته څه قيودات ږدې چې هغه داچې دخلفای راشدينو له سنتو او طريقو نه دده په آند هغه سنت دې مذكور حديث شريف كې مراد دي، چې هغه بعينه درسول الله صلى الله عليه وسلم سنت او طريقه وي، لكه له دښمنانو سره جهاد، ددين دشعايرو تقويت او داسې نور......بيا په دليل كې دعمر رضی الله تعالى عنه هغه قول راوړي، چې كله دده په خلافت كې ده مبارك (ابی ابن كعب) ته لاربښوونه وكړه، چې تراويح په جمع مسجد نبوی ص كې اداكړي، نوحضرت عمر رضی الله عنه چې يوه شپه دتراويحو دا جمع وليده نوويې ويل چې (فنعمت البدعة....) صاحب دسبل السلام وايې: چې كه چيرته دخلفاوو طريقوته سنت ويل كيدای نوده به ورته پخپله دبدعت كلمه نه كارولی، خونورو محدثينو بيا د(وسنة الخلفاء الراشدين....) حديث ډيره ښه او قناعت بخښونكې تشريح كړي، چې پخپله پكې د(سبل السلام) مولف ته ډيرښه او په معقول انداز ځوابونه ويل شوي، چې يوله هغې نه د(العرف الشذي للكشميری) كتاب دی، هغې ددې حديث شريف داسې عجيبه تشريح كړي: وفي شرح هذا الحديث قولان، قيل: إن سنة الخلفاء والطريقة المسلوكة عنهم أيضاً سنة وليس ببدعة، وقيل: إن سنة الخلفاء في الواقع سنة النبي -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وإنما ظهرت على أيديهم، ويمكن لنا أن نقول: إن الخلفاء الراشدين مجازون في إجراء المصالح المرسلة، وهذه المرتبة فوق مرتبة الاجتهاد، وتحت مرتبة التشريع....ژباړه: ددې حديث په شرح كې دوه نظره دي، يو داچې دخلفاوو سنت او ددوئ طريقه مسلوكه همدارنګه سنت ده او بدعت نده، داسې هم ويل شوي، چې دخلفاوو سنت په نفس الامريا حقيقت كې دحضرت محمد صلى الله عليه وسلم سنت دي، خو په دومره تفاوت چې دا سنت دخلفاوو په توسط ياددوئ په ذريعه ترسره شوي (يعني پخپله درسول الله صلى الله عليه وسلم په ذريعه ندي ترسره شوي) او داهم مونږته شونې ده چې وو وايو چې خلفاء راشدين د مرسله مصالحو په اجراء (يعني داهغه دي چې حكم په اعتبار دعلت سره وي خود اعتبار له شارع نه ثابت نوي) كې اجازه لري، چې ويې كړي او داهغه مرتبه ده، چې داجتهاد نه پورته او له تشريع نه لاندې ده) نودالعرف الشذی دې ډول تشريح داجوته كړه، چې دخلفاوو لخوا داسې كارونه ترسره كول، چې د دين احكامات پكې واضح شوي او د دين بهبود پكې نغښتی وي بدعت نه، بلكې سنت دي، لكه دعمر رضی الله عنه لخوا درمضان په مياشت كې په جمع دتراويحو لاربښوونه، يا د دريو طلاقو وقوع او داسې...يا هم د دريم خليفه عثمان رضی الله عنه دخلافت پر وخت د دريم اذان (لومړی اذان) پيلول او داسې هغه كارونه، چې مخكې نه وو او دې خلفاوو پيل كړل او تر قيامته پورې ثابت پاتې شول، هغه څه دي چې څوك كه ورته بدعت وايې نودې صحيح مرفوع حديث ته به هيڅكله ځواب پيدا نكړي چې (عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ بَعْدِي تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ).

........ لم يقل أحد من الأئمة الأربعة بأقل من عشرين ركعة في التراويح، وإليه جمهور الصحابة رضوان الله عنهم، وقال مالك بن أنس: بستة وثلاثين ركعة فإن تعامل أهل المدينة أنهم كانوا يركعون أربع ركعات انفراداً في الترويحة، وأما أهل مكة فكانوا يطوفون بالبيت في الترويحات، ثم إن حديث: < يصلي أربعاً فلا تسأل عن حسنهن وطولهن > فيه تصريح أنه حال رمضان، فإن السائل سأل عن حال رمضان وغيره كما عند الترمذي ومسلم ولا مناص من تسليم أن تراويحه كانت ثمانية ركعات ولم يثبت في رواية من الروايات أنه صلى التراويح والتهجد على حدة في رمضان بل طول التراويح، وبين التراويح والتهجد في عهده لم يكن فرق في الركعات بل في الوقت والصفة أي التراويح تكون بالجماعة في المسجد بخلاف التهجد، وإن الشروع في التراويح يكون في أول الليل وفي التهجد في آخر الليل نعم ثبت عن بعض التابعين الجمع بين التراويح والتهجد في رمضان، ثم مأخوذ الأئمة الأربعة من عشرين ركعة هو عمل الفاروق الأعظم، وأما النبي -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فصح عنه ثمان ركعات، وأما عشرون ركعة فهو عنه بسند ضعيف وعلى ضعفه اتفاق، وأما فعلا الفاروق فقد تلقاه الأمة بالقبول واستقر أمر التراويح في السنة

الثانية في عهد عمر كما في تاريخ الخلفاء وتاريخ ابن أثير وطبقات ابن سعد ، وفي طبقات ابن سعد زيادة أنه كتب عمر في بلاد الإسلام: أن يصلوا التراويح ، وقال ابن همام: إن ثمانية ركعات سنة مؤكدة وثنتي عشر ركعة مستحبة ، وما قال بهذا أحد ، أقول: إن سنة الخلفاء الراشدين أيضاً تكون سنة الشريعة لما في الأصول أن السنة سنة الخلفاء وسنته ، وقد صح في الحديث: < عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين > فيكون فعل الفاروق الأعظم أيضاً سنة ، ثم قيل: إن شروع التراويح أول الليل من سنة عمر ، وأقول: إنه من سنة النبي - صَلَى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كما يدل حديث الباب وحديث عائشة وجابر وزيد ، ثم هل يجب بلوغ عشرين ركعة إلى صاحب الشريعة أم يكفي فعل عمر ولا يطلب رفعه إلى صاحب الشريعة؟ ففي التاتار خانية: سأل أبو يوسف أبا حنيفة: أن إعلان عمر بعشرين ركعة هل كان له عهد منه ؟ قال أبو حنيفة ما كان عمر مبتدعاً ، أي لعله يكون له عهد فدل على أن عشرين ركعة لا بد من أن يكون لها أصل منه وإن لم يبلغنا بالإسناد القوي ، وعندي أنه يمكن أن يكون عمر نقل عشراً إلى عشرين بتخفيف القراءة وتضعيف الركعات ، وليعلم أن التراويح في عهد عمر تروى بخمس صفات ، أربعة منها ثابتة بالأسانيد القوية ، منها أنه صلى إحدى عشرة ركعة ، ومنها أنه صلى ثلاث عشرة ركعة ، ومنها إحدى وعشرين ركعة ، ومنها ثلاث وعشرون ركعة ، وأما إحدى وأربعون ركعة فسيجيء الكلام فيه ، وأما الأولى والثانية والرابعة فمذكورة في موطأ مالك ص ( **40** ) ، واستقر الأمر على عشرين ركعة......(العرف الشذى للكشميرى ج۲/ص۲۹۴ )

ژباړه او لنډ مفهوم:دائمه اربعه وو نه شل ركعته تراويح ثابتي دي اوداهغه مسئله ده ،چې جمهوروصحابه كرامورضوان تعالى عنهم اجمعين هم ورته ذهاب درلود ،دامام مالک رحمه الله دقول پر اساس تراويح ۳۲ ركعته دي اوداداهل مدينه وو عمل وو ،په ځينوروايا توكې له نبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه شل ركعته راغلي اوپه ځينوكې اته ركعته چې د(العرف الشذى )دقول سره سم داتو ركعتوثبوت سم دى اودادشلوسند كمزورى دى ،البته شل ركعته چې نن ائمه اربعه وواوپه مجموع كې امت قبول كړي دا دعمرفاروق رضى الله عنه عمل دى اودخلفاووسنت هم داسلامي شريعت سنت دى ،ځكه سنت يوهغه دى، چې پخپله درسول الله صلى الله عليه وسلم وي اوبل هغه دى چې دده ص دخلفاووسنت وي ،اوس دامسئله چې آياضرورده چې دا شل ركعته تراويح صاحب شريعت پورې ورسوو ؟كه نه دومره بس ده چې دادعمرفاروق رضى الله عنه فعل دى ؟هغه پوښتنه ده چې التتارخاني فتاوى رانقل كړي، چې يوه ورځ امام ابويوسف رح له امام ابوحنيفه رح نه وپوښتل چې آيادعمرفاروق رض سره ددې شلوركعتوتراويحوكوم عهد ،دليل ،يادا سې څه له پيغمبرصلى الله عليه وسلم نه ووچې ده كول ؟امام صيب ځواب وركړ،عمررضى الله عنه مبتدع نه وو ،يعني ده سره څه سند پدې هكله ضرور و ،خومونږته په غښتلي سند ندى رانقل شوى ،په عمري ص خلافت كې تراويح په پنځوصفاتوسره نقل شوي ،(يوولس ركعته ،ديارلس ركعته ،يوويشت ركعته ،شپږديرش ركعته او يوځلوښيت ركعته )چې موطأ امام مالک كې شته، البته نن سبا چې استقراردامرشوى او ددې پنځوصفاتونه كوم صفت امت دعمل او تګلارې لپاره غوره كړى ،هغه دشلو ركعتودى ،بس په همدې باندې خبره ولاړه ده.

ددې حديث له څېړنې نه ځوخبرې ځرګندې شوي ،يوداچې حضرت عمر رضى الله عنه چې دتراويحودتجمع كوم كاركړى دابدعت نه بلكې مسنون عمل دى ، بل داچې نن سبا چې امت شل ركعته تراويح قبولې كړي ،نوكه څوک دابيا هم نكوي ،نو ده به خرق الاجماع كړي وي......

دې لاندېنې عبارت كې هم دتراويحودتجمع لومړى وهلت تشريح شوى او هم داچې دخلفاووكړنې سنت دي نه بدعت:

عن عبد الرحمن بن عبد القارئ أنه قال: خرجت مع عمر بن الخطاب ليلة في رمضان إلى المسجد ، فإذا الناس أوزاع متفرقون يصلي الرجل لنفسه ، ويصلي الرجل ،فيصلي بصلاته الرهط ، فقال عمر: إني أراني لو جمعت

هؤلاء على قارىء واحد كان أمثل ، ثم عزم ، فجمعهم على أبي بن كعب ، فقال: ثم خرجت معه ليلة أخرى والناس يصلون بصلاة قارئهم ، فقال عمر: نعمت البدعة هذه ، والتي ينامون عنها أفضل من التي يقومون. يريد :آخر

الليل ، وكان الناس يقومون أوله. هذا حديث صحيح وأخرج محمد هذه القصة عن عبد الله بن يوسف ، عن مالك.

قوله: "أوزاع "أي: جماعات متفرقة لا واحد لها من لفظها ، يقال: وزعت الشيء بينهم ، أي: فرقته وقسمته.

وقوله: "نعمت البدعة هذه "إنما دعاه بدعة ، لأن النبي (صلى الله عليه وسلم ) لم يسنها ، ولا كانت في زمن أبي بكر ، وأثنى عليها

بقوله: "نعم " ليدل عل فضلها ، ولئلا يمنع هذا اللقب من فعلها ، ويقال: "نعم " كلمة تجمع المحاسن كلها "وبئس "كلمة تجمع المساوئ كلها.

وقيام شهر رمضان جماعة سنة غير بدعة ، لقوله (صلى الله عليه وسلم ) "عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين ".قال رحمه الله: اختلف أهل العلم في قيام شهر رمضان ، روي ذلک عن محمد بن يوسف ، عن السائب بن يزيد أنه قال: أمر عمر بن الخطاب أبي بن كعب ، وتميما الداري أن يقوما للناس بإحدى عشرة ركعة ، فكان القارئ يقرأ بالمئين ، حتى كنا نعتمد على العصي من طول القيام ، وما كنا ننصرف إلا في فروع الفجر.

وقال مالک ، عن يزيد بن رومان: كان للناس يقومون في زمان عمر بثلاث وعشرين ركعة في رمضان. ورأى بعضهم أن يصلي إحدى وأربعين ركعة مع الوتر ، وهو قول أهل المدينة ، والعمل على هذا عندهم ، وهو اختيار إسحاق. وأما أكثر أهل العلم ، فعلى عشرين ركعة يروى ذلک عن عمر وعلي وغيرهما من أصحاب النبي (صلى الله عليه وسلم ) ، وهو قول الثوري ، وابن المبارک ، والشافعي ، وأصحاب الرأي ، قال الشافعي: وهكذا أدركت ببلدنا بمكة يصلون عشرين ركعة.

ولم يقض أحمد فيه بشيء.

واختار ابن المبارک ، وأحمد ، وإسحاق ، الصلاة مع الإمام في شهر رمضان. واختار الشافعي أن يصلي وحده إذا كان قارئا.(شرح السنة للامام البغوى متنا وشرحا )ج۴/ص۱۱۹

دامام بغوي دشرح السنة دعبارت لنډ مطلب:

عبدالرحمن بن القارئ وايي چې يوه شپه له دوهم خليفه سره رمضان مياشت کې مسجدنبوي ص ته لاړم ،چې هلته خلک مختلفې ډلې وي، چا ځانته لمونځ کاوه، چا يوه کوچني ټولګي ته جمع ورکوله (تراويح) نوعمررضى الله عنه وويل چې داسې راته ښه ښکاري اوغوره بولم چې داټول په يوه قارى راټول کړم ،نويې ابی ابن کعب رضى الله عنه باندې راټول کړل ،نو بله شپه ورسره زه راووتم چې يوه قارئ باندې خلک راټول وو ،نوعمر رضى الله عنه وفرمايل چې دا ديرښه بدعت دى .............دلته خليفه رض ورته دبدعت کلمه استعمال کړه، ددې امله چې درسول الله صلى الله عليه وسلم په وخت کې داسې نه وو ،ورنه داتجمع دعرباض دهغه حديث له کبله سنت ده، چې پکې دخلفاوواعمالوته سنت ويل شوي وي ،بل دلته د(نعم)کلمه دبدعت له لفظ سره متصله کاريدلې ،داځکه چې دنعم محاسن ډيردي ،نوربحث مو مخکې پکې کړى ،خودلته چې د(شرح السنة )له عبارته راڅرګند شول ،هغه يوداچې دخلفاووطريقې بدعت نه ،بلکې ورته سنت ويل کيږي ،بل داچې دتراويحوتجمع هم ترې ثابته شوه او بله يوه نوې خبره ترې راووته ،هغه داچې: دوهم خليفه دبدعت په ويش سره ښه او بد ته(حسنه او سيئه )ته ډيرومسائلودحل دروازه خلاصه کړه ،ډيرخلک همدا اوس شته چې مشروع کارونه هم بدعت بولې او دحسنه او سيئه منځ کې فرق نه کوي ،دلته به دهغومتعصبوخلکوسترګې هم له خاورونه ډکې شوي وي ،چې مشروعات او هغه کارونه هم بدعت اوناروا بولې چې ددين دتقويت لپاره وي اوکوم ډول قباحت پکې نوي اونه هم پکې دشارع نه نهى راغلې وي ،نوپدې مؤمنانه فراست سره خليفه رض علماووته ډيرمسايلو دحل کيلي په لاس کې ورکړه ! ارحمه الله وارضاه.

........نعم ثبت العشرون من زمن عمر ففي الموطأ عن يزيد بن رومان قال كان الناس يقومون في زمن عمر بن الخطاب بثلاث وعشرين ركعة وروى البيهقي في المعرفة عن السائب بن يزيد قال كنا نقوم في زمن عمر بن الخطاب بعشرين ركعة والوتر قال النووي في الخلاصة إسناده صحيح وفي الموطأ رواية بإحدى عشرة وجمع بينهما بأنه وقع أولا ثم استقر على العشرين فإنه المتوارث فتحصل من هذا كله أن قيام رمضان سنة إحدى عشرة بالوتر في جماعة فعله عليه الصلاة والسلام ثم تركه لعذر أفاد أنه لولا خشية ذلک لواظبت بكم ولا شک في تحقق الأمن من ذلک بوفاته عليه الصلاة والسلام فيكون سنة وكونها عشرين سنة الخلفاء الراشدين وقوله عليه الصلاة والسلام عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين ندب إلى سنتهم ولا يستلزم كون ذلک سنته إذ سنته بمواظبته بنفسه أو إلا لعذر وبتقدير عدم ذلک العذر إنما استفدنا أنه كان يواظب على ما وقع منه وهو ما ذكرنا فيكون العشرون مستحبا وذلک القدر منها هو السنة كالأربع بعد العشاء مستحبة وركعتان منها هي السنة وظاهر كلام المشايخ أن السنة عشرون............ لكن أجمع الصحابة على أن التراويح عشرون ركعة.....(مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح ج۴/ص۴۳۹ ).

خلص مفهوم: ديزيدبن رومان او سائب بن يزيدنه رانقل شويوهغو روايتونوکې چې امام النووي يې هم تصحيح کړي داپه

اثبات رسيږي ،چې ددوهم خليفه په عصروزمان کې صحابووشل رکعته تراويح کولې اوموطأ

کې چې ديولسوررکعتوکوم روايت راغلی ،تطبيق يې داسې کيږي ،چې هغه مهال يوولس وي ،چې استقرارالامرنه وراغلی ،بيا چې کله استقرار راغی ،نو شل دعمل وړ وګرځيدې اوهمداموڼرته متوارث هم ده ،اوداخلفای راشدينو سنت دي ،ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم خو پرې دوجوب دويرې مواظبت نه دی کړی ،چې دده (صلی الله عليه وسلم( له وفاته وروسته دا امن متحقق شو ،نواوس سنت دي ،مشايخوهم ورته سنت ويلې دي اودصحابوو اجماع هم په شل رکعتوده ، د(مشکات )دشرحې (المرقات )په پورتنې عبارت کې هم جوته شوه، چې دخلفاووطريقوته سنت ويل کيږي ،چې څوک ورته بدعت وايي ،هغه اصلا په غلطولاړو سم شوی او هم داجوته شوه چې شل رکعته تراويح له صحابوونه منقول او دسنتو اطلاق پرې سم دی.

وأما الليث بن سعد فقال لو أن الناس كلهم قاموا في رمضان لأنفسهم وأهليهم حتى يترك المسجد لا يقوم فيه لكان ينبغي أن يخرجوا إلى المسجد حتى يقوموا فيه في رمضان لأن قيام رمضان من الأمر الذي لا ينبغي للناس تركه وهو مما سن عمر للمسلمين وجمعهم عليه قال الليث وأما إذا كانت الجماعة قد قامت في المسجد فلا بأس أن يقوم الرجل لنفسه في بيته وأهل بيته

لنډ مفهوم :ليث بن سعدوايي :چې که چيرته ټول خلک دخپلو اهاليوسره کورونوکې تراويح وکړي اوجومات پريږدي ،نامناسبه به وي ،ځکه درمضان المبارک تراويح هغه حکم دی چې پريښودل يې لاينبغي دي اوداهغه دي چې عمر رضی الله عنه مسلمانانوته سنت کړي اودوئ يې پرې راغونډ کړي دي.....ددې عبارت څخه هم څرګنده شوه چې دخلفاوومحدثات بدعت نه بلکې مسنون دي.

أن الموقوف يسمى في الاصطلاح سنة, كما يسمى حديثا وأثرا, و كتب السنة التي سيذكرها المؤلف بعد كتب (السنن) لا يورد أصحابها غالبا إلا الموقوفات, بل والمقطوعات أيضا, ويسمون الجميع سنة, وربما لم يوردوا من المرفوع إلا القليل النادر جدا, وكتاب (السنة )(لعبد الله بن أحمد ) شاهد على ذلک , وهو مطبوع, كذلک الصحابة كانوا يسمون فعل الخلفاء الراشدين سنة, ولهذا ذهب جماعة من أهل الأصول والحديث إلى أن قول الصحابي: من السنة كذا ليس من له حكم المرفوع, لاحتمال إرادته سنة من قبله من الخلفاء الراشدين, وقد استفسر أنس مرة عن قوله: من السنة كذا, سنة من أردت؟, قال: سنة أبي بكر وعمر, وهذا لأن النبي -صلى الله عليه وسلم -سمى ذلک سنة في قوله( عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين... ) الحديث اهـ .(الرسالة المستطرفةمحققة ومعها تعليقات ) ).

دپورتني عبارت خلص مفهوم :لکه موقوف حديث ته چې دمحدثينوپه اصطلاح کې حديث او اثروايي، همداسې ورته ورته سنت هم ويل کيږي اوکوموکتابونوکې چې موقوفات او مقطوعات دي ،ټول په سنت سره يادېږي ،پدې ترتيب سره نورصحابوبه دخلفاء راشدينوافعال سنت بلل ،داصولواواحاديثوپه کتابونوکې چې داسې راشي ،چې دادصحابي سنت دی ، نو مرادترې دانوي چې دامرفوع سنت دی ،ځکه ددې امکان وي ،چې ده به دخلفاوو سنت مراعات کړي وي، لکه چې همداسې پوښتنه له دانس رضی الله عنه نه وشوه: چې د(من السنةكذا )دچاسنت دې مراد دي ،نوده ورته وويل چې( سنة ابي بكروعمر )اوداځکه چې ددوئ به باره کې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايې چې پرتاسوزمااوزما دمهديينوخلفاووسنت لازم دي



ددې پورتنې تحقيق نه په ډاګه شوه :چې اهل سنت والجماعت به هغه څوک وي چې (سب سلف) به نکوي اوځانګړتياوې به يې داوي: چې دخلفای راشدينو تګلاره به يوه مسلوکه طريقه اومسنون عمل بو لي ،نوددې وروسته چې څوک دعمررضی الله عنه اوعثمان رضی الله هغه کارونه چې عام صحابه يې تاييديا پرې سکوت کوي ،اودوئ العياذبالله ورته بدعت وايې ،کله به داهل سنتو په دايره کې ځان کتلای شي ؟او څنګه مذکوروا حاديثوته ځواب مندلای شي ؟والله تعالی اعلم.

# دمسلميار ! نامسلمي خبري

خبير احمدم

ورمه ورځ د( اګست ) په ۸ ئي نيټه دکابل اداري دسناجرګي مشر چې ځان مسلميار بولي ، دجلال ابادپه شاهي ماڼۍ کې يې دخپل وژل ماما چې دچپرهارولسوالۍ دمعارف مدير هم وواو په دې ورستيوکې دنوموړي ولسوالۍ په مربوطاتوکې دنامعلوموسلوالوله لوري وژل شوى وو ، دفاتحې په مراسموکې کـه څه هم يولړ حقايقو ته اشاره وکړه خو ځيني خبري يې ناانځوله ، بې منطقه اووحشت زېږونکي هم وي ·

هغه دخبروپه يوه برخه کې دننګرهارامنيتي وضعه له صفرسره ضرب وښوده ، والي اوامنيتي مسؤلين يې په نارامۍواوبې کفايتوتون کړل ، يوڅوګامه نورهم وړاندې ولاړاوپه مشخص ډول والي ( ګل اغا شيرزى ) داسې مخاطب کړچې شپه ورځ په مستيو اوسات تيريو مصروف اوياويده وي ، مسلميار خبره نوره هم صريحه کړه اووې ويل چې ننګرهاراوس دطالبانوپه ولکه کې دي ، ولسوالۍ خوڅه چې اوس ښارکې هم په ښکاره رفت اوامدلري ·

مسلميار ، طالبانو ته هم خوله ورواړوله اودخپل ماما وژنه پرته لدې چې کوم ثبوت اوسندوړاندې کړي دهغوکاروباله ، هغه چې دخبروپه دې برخه کې منطق اومعقوليت نه درلودخپل بې مسؤليته قضاوت اونامراده هوډيې داسې څرګندکړ : طالب جانه ! زمادې قسم په خداى وي چې دخپل ماما دوينو پوراوانتقام به ستاله بچي بچي نه اخلم !!!؟

اوس به راشو دمسلميارپه خبرولنډې تبصري ته : شک نشته چې دننګرهاروالي شپه ورځ په مستيواوسات تيريو لګياوي اوآن کله ناکله هندي فاحشو ته هم دسندروکمپوزبرابروي ، ماخپله له څوتنو هغو خبريالانوچې له شيرزي سره هروخت ناسته ولاړه لري اوريدلي چې دشيرزي په دربارکې ېږي ساته دسازاوسرود اوسندرغاړو دستي ناستي اوحاضري وي ،په نورو ناروااوبې دينيو خوقلم شرميږي اواوله يادولو يې پناه غواړي ؛ خوله مسلميار څخه پوښتنه داده چې شيرزى خو نيږدې يوه لسيزه کيږي چې په ننګرهارله همدغې فحشا ، بې بندوباريو اومستيو سره حاکم اووالي دي اوتاغوندي يوکس چې په مسلميارهم ياديږي اودکابل په رژيم کې مهمه اوتصميم نيونکي څوکۍاومقام هم په واک کې لري دايوه لسيزه پرې خاموش اوغلى وي ؟ داچې اوس ستاماماووژل شو اودهغه دمرګ اودرد احساس درته وشونووينه دې په جوش راغله اودوالي نيمګړتياوې دې رابرسيره کړې !!

کـه تـه رښتيامسلمياراوله اسلام اومسلمانانوسره دې مينه واي نوله خپل موقف اولوړې دندې څخه به دې لاله مخکې ګټه پورته کړې واي اولکه دګل اغا شيرزي



غوندي دهغوسوونو لوپیوړوچاړواکودناړواوو اوغیړي اسلامي کړنو په خلاف به دې کـه عملي ګـام نـه پورتـه کـولای دبیان له جعلي ازادۍ څخه پـه استفادي بـه دي کومـه ورځ چیرته ویلي واي چې پـه کابل ، بلخ ، هـرات ، جلال اباد ، کنـدهار اونـورو ښـارونوکې دزنـاوو ، شـرابوبرحاله اډې اومراکز شتون اوفعالیت لري اوبائیدمخه یې ونیول شي ؟

کـه تـه ربښتیاهم مسلمیاراودامریکایانو ګـوډاګـی نه واې نوستادې قسم په الله وي چې تـه پـه کابل لـه یوې هغو کلیساوونه یـې خبرچې رسمادکورنیو چاروداوزارت لـه خواورته اجازه ورکړل شوي ؟

کـه تـه ربښتیا مسلمیاروایې نـو پـه اسلامي اوافغـاني فرهنګ دي کومـه ورځ خوابده کړي اواعتراض دي کړی چې ولـي دکابـل لـه لسـګونو تلویزونـو څخـه کفریـات اودجنسـي غرایـزو ضحنې ، ډرامـي ، فلمونـه اونورنشـرات خپریږي ، ایاتاونه لیدل چې دوړکـي اختـرپـه ویاړ دبامیـانو مجسمي تـه مخامخ پـه جوړشووکنسرتونواودموسیقی پـه محفل کې کومه بې دیني نه وه چې ترسره نشوه !!؟

اومسلمیارصـاحب ! اول خـوداخبره تـه پـه ثبـوت نشـي رسولای چـې ستامامادې طالبـانو وژلـی وي ، ځکـه کـه مامادې په ربښتیادمعارف مدیروي اودجاسوسـی پـه کومـه پیښه کې ملوث نـه وي زه بـاوردرکوم چې دماماقاتل دي طالب ندی ، بلکي بل چیرتـه یـې عامل اوقاتل ولټوه اوپـه دې خبـره هـم کلـک بـاوروله چې کـه مامـادی فرضـا دطالبانو له خواوژل شوي وي نوګنـاه اوجرم یـې هیڅکله دانـدی اونـه بـه وي چې هغـه دمعارف مدیرووانـه بـه یـې داګنـاه وه چـې هغـه دکابـل داجیـرریژیم دسـنادمجلس دمشرماماوو ، بلکي کیدای شي نورعوارض اوکړلاری بـه یې درلودي اوداهم په یادولره چې کله طالب څوک وژنـي نوهغه به اروموروداسې کوم څه کړي وي چې هغـه دمـرګ موجـب اومسـتحق ګـرځـي ، یابـه یـې داربکیـو کـوم لښـکرجوړولو تـه ملـي رابـډوهلي وي ، یابـه یـې دکـوم مجاهدجاسوسـي کـړي وي اویابـه یـې هـم دمعـارف ترڅتـر لاندې دعیسویت ربښو ځغلولو ته زمینه سازي کړي وي ؟

داچې له شواهدوپرته دخپل ماما دوینوپوروړي طالبان بولې اوپه یوه نامسلم قضاوت ان دهغومعصوم بچي هـم نـه معافوې دابـه ستاستره تیروتنـه اولویـه اشتباه وي ، ځکـه هغه بوش چې ته یې دسنامجلس ترګـدی اوچوکـی پـورې ورسولې اوله امریکایي غلامـی سره دمسلمیاری لقب هم ځانته ورکوې ، ګوره هغه هم په اګام ، دی بالا ، وزیرو ، کوړم اودننګرهارپه نوروسیموکې دمعصوموماشومانوپه ګډون پـه سوونو ملکـي اوبـې چاره وګړو ان سپین فورس اوزهرجنـي وسلي وکـارولي اوایـره ایـره کـړل ؛ خـودظلم انجـام بداورسوایي وي ؛ تـه بـه خبریـي چـې دبـوش هماغـه مغروري لښکري اوسرتمبه سیاست اوس لـه سخت شکست سره مخ دي ، ستاسي دړژیم ورته ستوني اوکومي وشلیدل چې یواځي مومه پریږدي ، خوبیاهم هغوی نـه ایساریږي ، دتیښتي لپاره یې خپلي بستري تړلي اوشایدتاهم اوریدلي وي چـې امریکـایي وینـدوي ابلـه ورځ وویـل چـې لـه ۸۰۰سووفوځې اډو څخه مو۷۰۰ اډې تخلیه اوترې کوچیدلي یو!!!؟

نومسلمیارصـاحب ! اوس دې هـم وخـت شـته چـې خواهشات ، امریکایـی ډالر ، اودرنـه تلونکي چوکـی ، دملت دارادي ، دیني اقدارو اوملـي غرورپـه وړاندې ناچیزه وبـولې ، لـه الله تعـالی څخـه معـافي وغـواړې ، دبصـیرت سترګـي وغړوې اوهغـه داستادیاسرخبره کـه جهاد نشـي کـولای اودیـن تـه خـدمت نشـي کـولای ، نـودین خومـه منحرفوې اوامریکایي دیمکراسی‌ته خواسلام اوالعیاذبالله حقه لارمه وایې !!/



# د استقلال ورځ

حافظ محمد خراساني

په افغانستان کې د داخلي جګړو سربېره د روسانو، ایرانیانو او انګریزانو سیاسي او نظامي یرغلونه اوج ته رسیدیلي وو، په ځانګړي توګه انګریزانو لومړی افغان جګړه په سرو سترګو بایللي وه، نو د کساد اخستا او د هیواد د نیونې په موخه یې په کال ۱۸۷۸م کال د نومبر په یوویشتمه زمونږ په هیواد تیری وکړ، یو پوځ د بولان د درې د لارې په کندهار یرغل وکړ، بل پوځ د کُرمې د لارې افغانستان ته ننوت او دریم پوځ د خیبر په لار افغانستان ته د راتلو او تیري تکل وکړ.

فریدریک البرټس لښکري د پیوار څخه تیر خو وروسته په ۱۸۷۹م کال د جنوری د میاشتې په اولسمه نیټه د ځدرانو، وزیرو، مسیدو علي خیلو او منګلو لښکرو وربانديې د هرې خوا بریدونه وکړو، د رابرټس ځواکونه ئې تارومار او دې ته اړ شوو، چې بیرته کرمې ته وتښتي د خیبر په جګړو کې د سمویل براون پوځ چې په ۱۸۷۸م د نومبر په یوویشتمه علی مسجد ته نږدې شو، د افغاني غازیانو د کلک مقاومت سره مخامخ شول، نو ځکه پرنګیان دې ته اړ شوو، چې د دې لارې د امنیت د نیولو په هیله شپږ زره پوځ د جنرال ماد په قومنده مؤظف کړي، دي کار براون سره مرسته وکړه په لار کې د مومندو او شینوارو د سیمو د تباهی نه وروسته ئې ځان جلال آباد ته ورسول.

د کندهار د لارې د جنرال سردو نالډ پوځونه چې په ۱۸۷۸م کال د نومبر په یوویشتمه خپل برید پیل کړی وو چې د غازیانو د سخت غبرګون له امله ئې ډیر پوځیان مړه او بار وړونکي ژوي تباه شول.

رشتیا خبره دا ده چې پرنګیانو ته یوځل بیا د سر او مال ډیر درانده تاوانونه ورسیدل او د غیورو افغانانو د ایلولو خوب ئې یوځل بیا سرچپه وخوت او پدې پوه شول، چې د افغانستان نیول او ساتل دوی ته په ډیره لوړه بیه تمامیږي، نو د هندوکش د رسیدو هوا او هوس ئې د مغزو ووتل او د بیرته تګ لاره ئې لټوله او د خبرو دنده ئې کیوناري ته وسپارله، چې له یعقوب خان سره د سولې خبرې ترسره کړي،

تر څو د افغانستان د عملي نيونې په ځای د چل او ول د مذاکراتو په لړ کې هيواد په سياسي توګه تر خپل واک لاندې راولي. په پايله کې يې په کال ۱۸۷۹م د مې د مياشتې په شپږويشتمه نيټه په ګندمک کې په محمد يعقوب خان يو ډير ناوړه تړون تحميل کړ، چې د دې تړون له مخې يعقوب خان ومنله چې:

د خيبر او ميچنې سيمې به پرنګيانو ته پريږدي او وعده ئې وکړه، چې د دې سيمو د اوسيدونکو سره به په بشپړه توګه اړيکې پرې کوي، نوموړي انګريزانو ته دا وعده ورکړه، چې د تل او شتر ګردن سيمې به هم پرنګې ته سپاري او د افغانستان بهرنۍ اړيکې به بريتانيې ته پريږدي او په پای کې پر يعقوب خان باندې دا هم ومنل شو، چې ټولو هغو کسانو ته به چې د انګريزانو په خدمت کې وو عمومي بښنه اعلان کړي، د دې معاهدې نه وروسته څرګنديږي چې لټې د پرنګې د سرحد په هکله د هندوکش سيمه په مغرب کې ليدلې وه، خو يعقوب خان دا خوب رشتيا او د افغانستان خپلواکۍ ئې د بشپړ تهديد سره مخ کړه. خو لکه چې تاريخ شاهد دی افغان اولس پخپله خاوره کې د انګريزانو حکومت کولو ته غاړه نه ايښوده او تل ئې د پرديو تيري کوونکو ته غاښ ماتوونکی ځواب ورکړی دی.

له همدې نيتې څخه د افغانستان سياسي استقلال د انګريزانو په لاس کې تر څو د امير حبيب الله خان د وژل کيدو څخه وروسته د هغه زوی امير امان الله خان غازي په ۱۹۱۹م کال کې خپله بادشاهي د هيواد د استقلال سره سم اعلان کړه او په خپله خبره شوي رسمي اعلاميه کې يې داسې څرګنده کړه.

«د افغانستان معظم ملته!

ما د پلار د شهادت په وخت کې د پادشاهی وکالت په کابل کې درلود(نوموړی د کابل والي وو) او اوس مې د دې درونډ بار او امانت دنده په هماغه اصالت سره متوکلاً او معتصماً بالله په غاړه واخيسته. څه وخت چې زما لوی ملت د پادشاهی تاج زما په سر کيښود، ما وعده وکړه چې بايد د افغانستان دولت د نړۍ د نورو آزادو هيوادونو په څېر د هيواد په دننه او بهر کې مستقل او آزاد وي. د افغانستان ملت د هيواد په دننه کې بشپړه آزادي لري او د هر ډول ظلم او تيري څخه په امان او خلک بايد د قانون تابع وي او بس. د بيګار او زور کارونه په ټولو اړخونو کې منع او د قبليدو وړ ندي.

زمونږ حکومت به په افغانستان کې ښايي داسې سموني وکړي چې زمونږ ملت او هيواد وکولای شي د نړۍ د متمدينو هيوادونو په منځ کې مناسب مقام لاس ته راوړي.»

د دې اعلاميې په ترڅ کې امان الله خان ملت ته د بشپړ استقلال وعده ورکړه. امان الله خان په ديارلسم د اپريل-۱۹۱۹ م کال د خپل هيواد استقلال اعلان کړ. انګريزان چې تازه د لومړۍ نړيوالې جګړې څخه فاتح راوتلي وو، په ګرده نړۍ يې سترګه نه ډکيده، نو د افغانستان د استقلال اعلان پرې داسې دروند تمام شو، لکه د کوچو په ګوله کې اغزی، نو ځکه يې د افغانستان د استقلال د اعلامیې پسې پيوسته په کال ۱۹۱۹م کې د مې د مياشتې په شپږمه نيټه افغانستان په خلاف د جنګ اعلان وکړ او افغانستان هم له خپل لوري څخه چټک نظامي ترتيبات ونيول. په درې محاذونو جلال آباد، چمن او وزيرستان کې له انګليسانو سره مخامخ جګړه پيل شوه.

په مشرقي سيمو کې د لالپورې د ولسوالۍ سره لنډ د ډکې په سرحدي سيمه کې جنرال صالح محمد خان په پښه باندې د معمولي ټپ له امله شا تګ ته اړ شو او د ده د خپلې وينا له مخې چې ګويا پښه مې په شهادت رسيدلې ده، د يو بل روايت سره سم پرنګيانو شپه په شپه کې په همدې محاذ د جنرال صالح محمد خان کسانو ته د رشوت په توګه په زريز رنګ رنګ شوي روپۍ د رشوت په توګه ورکړې، نو ځکه دوی ماته وکړه او په شټ شوو، خو په رښا کې ورته ثابته شوه

چې دا پيسې جعلي وې او پرنګيانو ډکه ونيوله د کابل او جلال آباد په ښارونو يې سختې هوائي بمبارياني پيل کړې.

د بلوچستان په محاذ کر جنرال عبدالقدوس خان هم کوټې او چمن ته زيان ورپيښ کړ.

خو د لويې پکتيا له لوري په وزيرستان کې انګريزي پوځونه د ډيرو ستونځو سره مخ شوو، په دې يرغليز بريد کې چې د نادر خان تر مشري لاندي وو، د کابل د قلعه جواد حضرت صاحبانو شمس المشائخ او نور المشائخ مجددي له خپلو مريدانو سره برخه واخسته، د دې لوري مجاهدين يې په جهادي جذبه سرشار او د يرغل لپاره اماده کړل، په عين حال کې غازي عجب خان اپريدي، د وزيرو او محسودو اتلانو هم په ډيري ميړانې او بهادرۍ سره په دې جګړه کې ونډه واخسته، په دريو ورځو کې يې پرنګي له ماتي او رسوايي سره مخ کړو، او د جګړې روحيات يې وبايلل، سرويکی، وانه- سيپلاتوی، تانائی، ګومل ئې آزاده کړه او په تل يې بريد وکړ، پرنګيان له دې بريدونو څخه په دومره بدحالت سره تيښتې ته اړ شوو، چې هرڅه ځينې پاتې صرف خپل سرونه ئې وښکل.

((په جنوبي محاذ پکتيا (ښتينخوا /پښتونخوا) کې بريتانيوي چاونۍ لکه سپين وام، وانه په ۱۹۱۹/۵/۲۳ نيته او تل په ۱۹۱۹/۵/۲۷ م نيته افغان اولسي لښکر ونيول او بيا افغاني منظمو قواؤ چې د جنرال محمد نادرخان ترقوماندې لاندې وې په لاس کې ونيول، خو دا يواځې عسکري چاونۍ نه وې چې بريتانيوي عسکرو د لاسه ورکړې، بلکې د وزيرستان ننګيالو او پتمنو پاڅون کوونکو د اتيا (۸۰) څخه زياتې د برتانويانو تر لاس لاندې چاونۍ ونيولې چې داته خيل، بويا، ايشه، شوا، کجوری، امات خيل، توت نرئ، شينکئ، جنډوله، تانائی، سپين کڅ، ګل کڅ، مورتزا (مُرتضی)، مغول کوټ، اپورئ او درګی ئې ځينې مثالونه دي، چې دغه چاونۍ بيا منظمو افغاني قواو بيا اشغال نه کړی.

هير دې نه وي چې د بريتانيوي پوځ ځينې غښتلو کنډکونو چې بومي يا ځايی وګړو جوړ کړي وو، د خپل اولس د ملي پاڅون ملاتړ وکړ.

پدې ترتيب افغانانو وکولای شو چې د انګليسي قواو ترمنځ ارتباطات د قطع کيدو او انګليسي فوځونه د مطلقې ماتې د خطر سره مخ کړي.

نو انګليسانو د افغانستان د خپلواکی په رسميت پيژندلو او متارکې ته غاړه کيښوده، چې ۱۹۱۹/۲/۳ م کال کې نافذه شوه.)) او په اته ويشتم د اسد ۱۲۹۸ لمريز په ځليريشتم د جولای ۱۹۱۹ م کال د سولې د شرايطو د مطالعې په هيله د سردار علی احمد خان په مشری افغاني پلاوی راولپندی ته لاړ خو د دې جرګې د تللو مخکې د سولې تدابيرې پروګرام د دواړو دولتونو د خوا نيول شوی وو.

امان الله خان د استقلال په تامينولو نورو هوادونو سره خپل ديپلوماتيک روابط ټينګ کړل.

ددې تړونونو په لړ کې په فروری ۱۹۲۱ د افغانستان او روسانو ترمنځ د دوستۍ يو تړون لاسليک شو.

په همدی ډول د مارچ په لومړۍ ورځ ۱۹۲۱ م کال د افغانستان او ترکې تر منځه د دوستی او همکاری تړون رامنځ ته شو.

همدارنګه د مارچ په مياشت ۱۹۲۳ م کال لومړنی اساسي قانون د لوی جرګی له خوا تصويب او په ټولنه کې ئې د تطبيق وړتيا پيدا کړه د دې قانون له مخې د غلامانو اخيستل او خرڅول رسماً ممنوع اعلام شول.

د امان الله خان د پادشاهی په دوره کې د لومړي ځل لپاره په دوه ويشتم د اپريل ۱۹۲۲ م کال د فرانسې او افغانستان تر مخ د دوستي تړون لاسليک شول په نهم سپتمبر ۱۹۲۲ يو بل فرهنګي تړون د دولتينو ترمنځ نافذ شو، چې د هغه له مخې د افغانستان د لرغونو اثارو سندونو چاری فرانسوي لرغون پيژندونکو ته وسپارل شو.

په همداسي توګه ګڼ ترونونه لاسليک او په هيواد کې ګڼ بدلونونه راوستل شوو.

ويل کيږي، کله چې چې امان الله خان خپل يرغليز بريد په ذکر شوي درې محاذونو کې په انګريزانو پيل کړ، نو په ټول هند کې د امان الله خان په نوم د جمعې خطبه ويل پيل شوه او ورسره په ټول هند کې د بغاوت زوږ پورته شو، د انګريزي لښکرو په منځ کې تر ډيره حده رابطه وشليده، نو ځکه هغوی په ډيره چټکۍ سره د استقلال منلو ته تيار شو، چې له کبله يې امان الله خان خپلو لښکرو ته د عقب نشيني حکم ورکړ او داسي فرصت يې له لاسه ورکړ، چې په سلګونو کلونو کې يو ځل د يو ملت په لاس ورځي، که چيرته امان الله خان خپلو لښکرو ته د پرمختګ حکم کړی وای نو د احمد شاه ابدالي، شهاب الدين غوري او محمود غزنوي په څير به د ده لښکري د هند تر بل لوري رسيدلي وې، بلکې د هغوی په نسبت امان الله خان ته د پرمختګ امکانات ډير قوي او پياوړي وو، ځکه ټول هند له انګريزانو ناخوښه او نفرت يې ترې کول او د همداسي يو امير او سلطان په انتظار وو. په همداسي توګه کله چې د امير امان الله خان په امر مجاهدينو ته د عقب نشيني حکم وشو، نو په هغه مهال مجاهدين په وزيرستان کې سره يو ځای شول، هغوی نه غوښتل چې له جهاد څخه لاس په سر شي، بلکې هغوی د انګليسانو پوره شکست او تعقيبول غوښتل.



انګريز مرکچې په خپل يادداشت کې داسي ليکلي دي: د سردار احمد علي په مشري چې کوم افغاني هيئت د استقلال د تړلاسه کولو د مذاکراتو لپاره پنډۍ ته راغلی وو، زه د هغوی له غټو غټو بړېتونو او قدونو څخه بالکل متاثره نشوم، بلکې زه له هغه تورو څخه په ډار کې وم چې په ټول هند کې زموږ په خلاف له ټېکو څخه وتلې وې.

دا دی د استقلال سل کلونه پوره کيدونکې دي، د استقلال ورځ د پخوا په څېر په ټول هيواد کې په ډېر جوش سره په دولتي دفاترو کې لمانځل کيږي، خو نا اشنا او له شرمه ډکه خبره دا ده، د استقلال ورځ په داسي حالت کې لمانځل کيږي، چې د بريتانويانو په شمول له پنځوسو څخه د زياتو هيوادونو يرغليز لښکر د همدې استقلال لمانځونکو د امنيت لپاره ولاړ وي، که تاسو استقلال لمانځئ نو بيا دا فوځونه څه کوي؟ معلومه شوه چې پرون د استقلال په جګړه کې هم تاسو له انګليسانو سره ولاړ وئ او نن هم. په حقيقت کې خو استقلال هغه ځوانان لمانځي چې نن هم د همدې غربې لښکر په خلاف په غرونو او درو کې اوسيږي.

# شیوۀ انتخاب زعامت در اسلام

عبدالقدوس "راجي"

از نظر اسلام فردی از طرف زمامدار قبلی مسلمانان یا اهل رأی برای تصدی زعامت مسلمانان کاندید میشود، اهل شورا- درصورت تعدد کاندیدها- یکی را انتخاب میکنند، واگر کاندید یک نفر باشد، موافقت خود را با کاندیداتوری شخص مذکور اعلان نموده بیعت میکنند.

واما تعیین سایر مناصب به استثنای مقام خلافت- یا امامت ویا زعامت عام- از طرف زمامدار عمومی مسلمانان با درنظر داشت مصلحت عامه‌ی جامعه‌ی اسلامی وبه مشوره‌ی اهل شوری صورت میگیرد.

## حرص وتلاش در راه رسیدن به قدرت

اسلام طلب امارت (منصب) حرص و تلاش در راه آن را به هرعنوانی که باشد، حرام وممنوع قرار داده است؛ زیرا بیشتر- بلکه همه‌ی- کسانیکه خواستار قدرت اند، وبخاطر بدست آوردن آن تلاش میورزند، افراد جاه طلب بوده، ورسیدن به حکومت ومنصب را بخاطر استعلا وبرتری بالای دیگران میخواهند که نتیجه‌ی حتمی بقدرت رسیدن این گونه اشخاص فساد وانحطاط جامعه می باشد.

پیامبر ﷺ طلب منصب ومقام، وحرص ورزیدن برآن را حرام قرار داده، وازگماشتن افرادیکه طالب قدرت بودند، ابا ورزیده است:

1- عن عبد الرحمن بن سمرة قال: قال النبي ﷺ: "يا عبد الرحمن بن سمرة، لا تسأل الإمارة؛ فإنك إن أعطيتها عن مسألة وكلت إليها، وإن أعطيتها من غير مسألة أعنت عليها". متفق عليه.

پیامبر ﷺ برای عبدالرحمن بن سمره گفت: "ای عبدالرحمن بن سمره! امارت وحکومت را درخواست مکن؛ چون از روی درخواست وعلاقمندی به تو داده شود، مسؤولیت انجام آن به عهده‌ی تو سپرده میشود، وخداوند در این کار با تو کمکی نخواهد کرد، اگر بدون درخواست تو، برایت داده میشود، در انجام آن کمک ویاري خداوند با تو می باشد".

2- عن أبي موسى قال: دخلت على النبي ﷺ أنا ورجلان من بني عمي، فقال أحد الرجلين: يا رسول الله، أمّرنا على بعض ما ولاك الله عز وجل. وقال الآخر: مثل ذلك. فقال: "إنا والله لا نولّي على هذا العمل أحداً سأله، ولا أحداً حرص عليه". (رواه مسلم)

ابو موسی اشعری گفت: من با دوتن از پسران کاکایم نزد پیامبر ﷺ رفتیم، پس یکی از آنها گفت: ای رسول خدا، مرا بر برخی از کارهائیکه خداوند به تو سپرده است، مقرر کن. ودیگری نیز مانند وی سخن گفت. پیامبر ﷺ فرمود: "سوگند به خداوند، شخصیکه خواستار این کار (منصب ومقام) بوده باشد، ویا برآن حریص باشد نمی گمارم".

3- عن أبي هريرة عن النبي ﷺ قال: "إنكم ستحرصون على الإمارة، وستكون ندامة يوم القيامة، فنعم المرضعة وبئست الفاطمة". (رواه البخاری)



" پیامبر ﷺ فرمود: شما برای بدست آوردن امارت (مقام ومنصب) حرص خواهید نمود، درحالیکه امارت موجب ندامت وپشیمانی در آخرت خواهد بود.

پس این مقام ومنصب خوب شیر دهنده (در دنیا) وبد جدا کننده از شیر (درحالت بعد از مرگ) می باشد".

از احادیث فوق مسایل زیر استفاده میشود:

1 - این دلایل وامثال آن طلب امارت وخواستار زعامت را با کمال صراحت حرام وتأکید میکند.

جمله ی: "لا تسأل الإمارة" درحدیث عبدالرحمن بن سمرة نهی صریح پیامبر ﷺ دلیل بر حرمت قطعی این عمل است بخصوص اینکه: پیامبر ﷺ علت این نهی را عدم موفقیت چنین اشخاص درکار قرار داده فرمود که: توفیق الهی نصیب اشخاص طالب قدرت نبوده، واز یاری ومعونت پروردگار محروم میگردد.

2 - علاوه بر ارشادات نبوی، عمل مبارک پیامبر ﷺ نیز نشان میدهد که طلب قدرت ومنصب کار شایسته ای در اسلام نیست، وپیامبر علیه السلام طالبان قدرت را محروم ساخته فرمود: "والله لا نولي على هذا العمل أحداً سأله ...".

3 - برای امت اسلامی با تأسی از پیامبر ﷺ لازم است که با افراد قدرت خواه، افرادیکه میخواهند با حرص وتلاش به قدرت برسند، هیچ همکاری نکرده، وآنها را از رسیدن بقدرت محروم گردانند. {لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ} [الأحزاب: 21].

4 - طبق فرموده ی پیامبر ﷺ - پیامبریکه از وحی سخن میگوید، نه از هوا وهوس - شخص طالب امارت وزعامت نا موفق ونا کام است، گرچند زمام دار گردد؛ زیرا یاری وتوفیق الهی شامل حال او نمی باشد؛ چون او به اساس طلب، حرص وتلاش خود به این مقام رسیده است؛ بنابرآن او از کمک غیبی، ومدد الهی محروم میباشد.

به اسلامگرایانی که میخواهند از طریق انتخابات زعامت وقدرت را بدست بیاورند، گفته میشود: اگرهدف شما اسلام، حکومت اسلامی، واجرای احکام اسلامی است، هیچ گاه به این شیوه به هدف نخواهید رسید؛ زیرا به شهادت پیامبر ﷺ لطف ویاری خداوند با شما نیست، واین شیوه ی رسیدن بقدرت را پیامبر ﷺ شیوه ی غیر مشروع خوانده است: "لا تسأل الإمارة".

وهم چنان اوضاع وواقعیت های حرکت های اسلامی که به انتخابات رو آوردند، نیز شاهد وبیانگر این پیش بینی پیامبر گرامی اسلام است.

ودر مواردی هم به قدرت رسیدند، ولی موفق به اجرای قانون اسلامی نه شدند، بلکه چون دیگران منحرف گشتند.

5 - از روایت های متعددی که در این مورد نقل وثابت شده، دانسته میشود که علت ممنوع بودن قدرت خواهی تنها ضعف شخصیت شخص قدرت خواه نیست.

دربعضی موارد (مانند حدیث ابو ذر) پیامبر علیه الصلاة والسلام ضعف شخصیت را علت این نهی قرار داده، ودر موارد دیگر، به علت های مختلفی اشاره رفته است. ازجمله: خواستار قدرت دلیل حرص وجاه طلبی بودن، وبه اساس آن محرومیت از توفیق وکمک ها ی غیبی خداوند، وطبق حدیث ابی هریره خواستار مقام ومنصب صرفنظر از عوامل وانگیزه های آن عمل نا مشروع، وموجب حسرت وندامت در آخرت قلمداد شده است.

رسیدن بقدرت از طریق انتخابات نه تنها خواستار امارت است، بلکه بالاتر از آن حرص در راه رسیدن به آن است؛ اگر این خواستار قدرت نباشد، این همه تلاش ها، کمپاین ها، وعده های دروغین وایتلاف های نا مقدس حتی با گروه واحزاب الحادی و لائیک وسیاست های متضاد وموقف گیری ها متناقض برای چیست؟

انتخابات اعم از انتخابات پارلمانی وریاستی - چه درتعیین نمایندگان ولایتی وچه نمایندگان شوره های عالی - عبارت است از:

مردم از هرگروه وهر قشر برپای صندوق های رأی رفته به تأیید نماینده ی دلخواه خود رأی میدهند، وسرنوشت ملت خویش را (بزعم خود) برای سالهای معین بدست آنها می سپارند، ودر نتیجه کسیکه رأی اکثریت راکسب کرده باشد به عنوان رئیس دولت، ویا نماینده ی مردم درولایت ویا در شورای عالی منتخب می گردد.

## اکثریت محوری

معیار در این انتخابات رأی اکثریت است، اکثریتی که از افراد با ایمان، با تقوی و آگاه تشکیل نیافته بلکه طبق تعبیر افلاطون و ارسطو از اکثریت جاهل و حکمرانی جهالت به اساس اکثریت محوری به وجود آمده، ونماینده‌ی مردم بر این اساس منتخب می گردد.

حالاً بینیم که اسلام در مورد این اکثریت چه نظر دارد؟ آیا فیصله ها وتعیین زعامت در اسلام بر این اساس است؟

برخلاف اصل مسلم در نظام دموکراسی قرآن در آیات متعددی این موضوع را باشدت رد کرده وبرای اکثریت عددی هیچ اهمیتی قایل نیست، ودر حقیقت مقیاس را اکثریت کیفی میداند، بلکه اکثریت مردم از دیدگاه قرآن در گمراهی، شرک، نادانی، بی ایمانی، فسق وناسپاسی هستند :

{وَإِنْ تُطِعْ أَكْثَرَ مَنْ فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ} (الأنعام:116) *" واگر از بیشتر کسانی که در این سرزمین می باشند پیروی کنی تو را از راه خدا گمراه می کنند".*

(وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُمْ بِاللَّهِ إِلَّا وَهُمْ مُشْرِكُونَ) (يوسف:106) " بیشترشان به خدا ایمان نمی‌آورند جز اینکه [با او چیزی را] شریک می گیرند".

(وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِمْ مِنْ عَهْدٍ)(لأعراف: من الآية102) " در بیشتر آنان عهدی [استوار] نیافتیم و بیشترشان را جدا نافرمان یافتیم".

( وَلا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ)(الأعراف: من الآية17) " و بیشترشان را شکرگزار نخواهی یافت".

(وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ)(يوسف:103) " و بیشتر مردم هر چند آرزومند باشی ایمان آورنده نیستند".

( وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ)(الأنعام: من الآية111) " ولی بیشترشان نادانی می کنند".

(وَلَكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لا يَعْلَمُونَ)(الأنعام: من الآية37) " لیکن بیشتر آنان نمی دانند"

(وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لا يَعْلَمُونَ)(الروم: من الآية6) " ولی بیشتر مردم نمی دانند".

وهم چنان فیصله ها در شوراهای اسلامی به اساس اکثریت محوری نیست؛ چون هدف ومدار شورای اسلامی رسیدن به حق وحقیقت است؛ لذا هر رأی سالم، سازنده ومنطقی که موافق با روح اسلام وناظر به مصالح جامعه بوده باشد، مورد تأیید شورای اسلامی قرار میگیرد هر چند رأی اغلب اعضای مجلس برخلاف آن باشد.

مطالعه‌ی سیرت پیامبر ﷺ وخلفای راشدین ودقت در شوراهای آنها نشان میدهد که پیامبر ﷺ ویاران گرامی او با تأسی از این اصل گاهی در برابر نظر مثبت ومعقول یک تن از اعضای مجلس تسلیم میشدند، وبرآن اعتماد مینمودند.

اعتماد پیامبر ﷺ به رأی حباب بن منذر در صحنه‌ی بدر، وبه رأی سلمان فارسی در جنگ خندق، وهم چنان اعتماد ابوبکر صدیق - رضي الله عنه - به رأی عمر - رضي الله عنه - در گرد آوری قرآن در یک نسخه، واعتماد وی به رأی عبد الرحمن بن عوف - رضي الله عنه - در باره‌ی استخلاف عمر و... از نمونه های بارز این اصل اسلامی است.

یک نگاه در چهره‌ی جهان کنونی وحکومت هائیکه بر اساس اکثریت ها بنا شده وقوانین نادرست وآمیخته باهوس های که گاهی از طرف اکثریت ها به تصویب می رسد نشان میدهد که اکثریت عددی دردی را دوا نکرده است، بسیاری از جنگ ها را اکثریت ها تصویب کرده اند وبسیاری از مفاسد را آنها خواسته اند.

استعمارها واستثمارها، جنگ ها وخونریزی ها، آزاد شناختن مشروبات الکلی، قمار، سقط جنین، فحشا وحتی پاره ای از اعمال شنیع که ذکر آن شرم آور است از طرف اکثریت نمایندگان بسیاری از کشورهای به اصطلاح پیشرفته که منعکس کننده نظریه‌ی اکثریت توده‌ی مردم آنها است گواه براین حقیقت می باشد.

ظلم وانحرافات از طریق تصویب این مجالس شکل قانونی به خود می گیرد. مثلاً هم جنس بازی در انگلستان - که از بزرگترین علمبردار دموکراسی درجهان است- قانونی میشود.

سقط جنین ومفاسد دیگر در بسیاری از کشورهای غربی به حکم قانون مجاز میگردد.

حد زنا در کشور اسلامی پاکستان به اساس خواستار اکثریت اعضای پارلمان لغو اعلام میگردد. ودر کشور اسلامی مصر، زن همچون مرد از حق طلاق برخوردار میشود.

ودر ایران با اینکه زمام دولت بدست روحانیان است، حق میراث زن با مرد به اکثریت آرا یکسان تصویب میگردد.

ودر شورای افغانستان سن بلوغ پسر 18 وسن بلوغ دختر 17 سال بر خلاف نصوص صحیح وصریح حدیث به اکثریت آرا تصویب وشکل قانون را می گیرد.

## محدوده‌ی شورا

از دیدگاه اسلام تقنین (قانونگزاری) از آن خدا است، بلکه مسأله‌ی تقنین یکی از شؤون توحید است که جز خداوند واحد قهار هیچ کسی نه فرد ونه هیأت حق تشریع وقانونگزاری را ندارد.

وبه رسمیت شناختن هر نظام وقانونی غیر قانون خدا جاهلیت، شرک وگمراهی محسوب میشود: {أفحكم الجاهلية يبغون} "آیا جویای حکم جاهلیتی ناشی از هوا وهوس های مردم هستند؟"

{ومن هم لم يحكم بما أنزل الله فأولئك هم الكافرون}

"وکسیکه بدانچه خدا نازل کرده حکم نکند، او ومثال او کافرند".

با توجه به این اصل اسلامی وظیفه ومسؤولیت مجلس شورای اسلامی تشریع وقانونگزاری نیست، بلکه شورا در اسلام در مسایلی است که حکم خاصی در مورد از سوی خداوند نازل نشده باشد.

اما در مسایلیکه نص شرعی وجود دارد، پیروی بی قید وشرط حکم شارع لازم وفرض است: {وما كان لمؤمن ولا مؤمنة إذا قضى الله ورسوله أمراً أن يكون لهم الخيرة من أمرهم} [احزاب: 36]

"هیچ مرد وزن مؤمن در برابری کاریکه خداوند وپیامبرش داوری کرده باشد، اختیاری از خود در آن ندارند".

کار اصلی مجلس شورای اسلامی - که باید اکثریت مجلس را علما وفقهای برجسته تشکیل دهند - طرز اجرای دستورات، ونحوه‌ی پیاده کردن احکام وحل مشکلات وموضوعات پیچیده‌ی مورد نیاز جامعه‌ی اسلامی در امور داخلی وذات البینی وامور خارجی در چارچوب ضوابط وقواعد کلی اسلام، استخراج واستنباط احکام آن موضوعات از قواعد کلی، وتطبیق قواعد بر مصادیق آنست.

بنابراین شورا در اسلام در محدوده‌ی موضوعات وطرز اجرای قانون است، نه در قانونگزاری. در سیرت پیامبر ﷺ وباران گرامیش می خوانیم که آنها هیچ وقت در قانونگزاری مشورت نمیکردند، وتنها در طرز اجرای قانون نظر مسلمانان را میخواستند؛ لذا هنگامیکه پیامبر ﷺ پیشنهادی را طرح میکرد، مسلمانان نخست سوال میکردند که آیا این حکم الهی است که قابل اظهار رأی نباشد، ویا مربوط به چگونگی تطبیق قوانین میباشد، اگر از قبیل دوم میبود، اظهار نظر میکردند، واگر از قبیل اول میبود، تسلیم میشدند.

ودر روایت بخاری در ارتباط شورای خلفای اسلامی چنین آمده است: "فإذا وضح الكتاب والسنة لم يتعدوه إلى غيره".

"در صورت بودن حکم قرآن وسنت از آن تجاوز نمی کردند".

مورد شورای خلفای راشدین در مسایلی بود که نص شرعی نمیبود، مسایلی که حکم آن از نصوص قرآن وحدیث معلوم می بود، هیچ گاه مورد شورا قرار نمیگرفت.

واما پارلمان در نظام دموکراسی عبارات از "قوه‌ی مقننه" و "مجلس قانونگزاری" است که از وظایف مهم آن تصویب، تعدیل یا لغو قوانین وفرامین تقنینی به اساس اکثریت محوری است.

وبه همین دلیل در این مجالس قوانین زشت واحمقانه ای مانند: مجاز بون همجنس گرائی، وبه رسمیت شناختن عقد ازدواج در میان دو فرد مذکر، ومشروعیت جنگ در برابر کشور وملتیکه از اوامر طاغوتی استکبار جهانی سرپیچی میکنند و.. تصویب میگردد.

## اعتبار کمیت نه کیفیت وحکومت اکثریت جاهل

در گذشته گفتیم که در انتخابات به سیستم دموکراسی معیار اکثریت کمی است، نه کیفی؛ بنابراین رأی یک دانشمند خبیر وآگاه با رأی یک جاهل، ورأی یک عالم پرهیزگار با یک انسان منحرف ومعتاد، ورأی یک مسلمان با کافر یکسان است. وتمام افراد کشور

بصورت یکسان حق شرکت در انتخابات اعم از رأی دهی وکاندیداتوری را دارند، وبدینوسیله سرنوشت کشور وملت به دست وآرای افراد جاهل طبق تعبیر قرآن اکثریت گمراه سپرده میشود.

ارسطو، پدر علم سیاست، دموکراسی را به عنوان شکل فاسد وگمراه حکومت، نوعی از حکمرانی مردم جاهل، محکوم کرد.

افلاطون، معلم او، آن را حکمرانی جهالت نامید.

ولکی (یکتن از دانشمندان) دموکراسی را این گونه توصیف کرد: " حکومت فقیرترین، جاهلترین، ناشایسته ترین کسانی که لزوماً بسیار هم زیاد هستند".

در دموکراسی رأیها را می شمارند نه اینکه آنها را وزن کنند. اکثریت در مجلسها، هیئت های داوری وکابینه ها طوری تصمیمات را اتخاذ می کنند که ممکن است خردمندان دراقلیت وانزوا قرار گیرند، وابلهان کارها را پیش ببرند. وانگهی، نمایندگان منتخب مردم، حرفه ای، بی صلاحیت وبی تجربه اند. آنها مهارت مدیریت وفراست عملی ندارند.

به عقیده عده ای نظام حکومت از طریق انتخابات شکل حکومتی است که در آن به گوسفند حق انتخاب چوپان داده میشود، اما گوسفندان همچنان گوسفند می مانند.

اما اسلام این حق را برای تمام افراد اعم از افراد دانشمند وجاهل افراد نیک وبد نمی دهد، ونه از دیدگاه منطق اسلام رأی عالم با جاهل یکسان نمی باشد:

{ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لا يَعْلَمُونَ } [الزمر:9 ]

" بگو آیا افراد دانشمند با افراد جاهل ونادان یکسانند؟ "

از دیدگاه اسلام علما ودانشمندان واهل بصیرتی که آشنائی به امور دارند، حق تعیین سرنوشت کشور را دارند، نه افراد جاهل وجنایت پیشه. در این مورد خداوند متعال میفرماید: {وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِنَ الأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَى أُوْلِي الأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ }[النساء83]

" وهنگامی که (خبری یا) کاری که موجب امن وترس (ازقبیل قوت وضعف، وپیروزی وشکست و..) به آنان میرسد آن را سریعاً در بین مردم پخش وشایع میکنند، اگر آنها چنین سخنان را به پیغمبر وفرماندهان خود واگذار میکردند (وخبرها را تنها به مسئولان امر گزارش میدادند) وتنها کسانی که اهل حل وعقد هستند از آن خبر میشدند، آنچه که می بایست ولازم بود از این خبر استفاده ودرک میکردند (واین امر به نفع مسلمانان تمام میشد)".

این آیه مؤمنان را ارشاد میفرماید تا در مسایل مهم به مسؤولین وسران عالم وکاردان مملکت مراجعه نمایند ومشورت وتصمیم گیری را حق علما وصاحب نظران می داند.

بنابراین علما ودانشمندان واهل بصیرتی که آشنائی به امور دارند به تصمیم گیری سزاوارترند

حضور وشرکت کفار وافراد جنایت پیشه در انتخابات وتعیین سرنوشت کشور، ومساوی قرار دادن آنها با افراد سالم ومؤمن وعضویت آنها در مجلس شورا نه تنها باروح اسلام بلکه با نصوص صریح قرآن منافات دارد؛ زیرا امانت داری وخیر خواه بودن مشاور از شرایط اساسی آن است، وقرآن کافران را دشمن اسلام ودشمن خدا معرفی مینماید: {يا أيها الذين آمنوا لا تتخذوا عدوي وعدوكم أولياء...} [ممتحنه:1]

"ای مؤمنان! دشمنان من ودشمنان خود را دوست نگیرید".

همان گونه که آیه ی 119 سوره ی آل عمران گماشتن کفار را در کارهای مهم از جمله مشاور ورازدار گرفتن آنها را حرام قرار داده است: {يا أيها الذين آمنو الا تتخذوا بطانة من دونكم}

"ای مؤمنان کافران وبیگانگان را محرم اسرار خود قرار ندهید".

دقت وتأمل در مجالس شورای پیامبر ﷺ وخلفای راشدین نیز نشان میدهد که هیچ گاه هیچ کافری در مجالس شورای آنها عضویت نداشته است.

بلکه اسلام قانونی به عنوان "عهد" و"ذمه" دارد که تمام مصالح اقلیت کفار در آن درنظر گرفته شده است.

اجیررژیم ګوته مجاهدینوته نیسي ، تاسي دملکي تلفاتو دمخنیوي اوکمولو په برخه کې څومره جدي اومتوجه یاست اوخپل ماتحت مسؤلین اوافرادوخت په وخت دعالیقدرامیرالمؤمنین حفظه الله دغه امر ته چې ( ملکي تلفات په هیڅ بیه دتوجیه وړندی اوباید مجاهدین تري ځان وساتي ) متوجه اواګاه کړي مودي ؟

**ځواب** : دا پوښتنه تقریبا په دوه برخومشتمله ده ، اوله دا چې ملکي تلفات دمجاهدینو له لوري رامنځته کیږي که ددښمن له لوري ؟

دوهم دا چې مونږ دملکي تلفاتو دمخنیوي په اړه څومره متوجه یو او مجاهدین مو څومره اګاه او ځیر کړي دي ؟

زما په اند ملکي تلفات ټول ددښمن له لوري رامنځته کیږي ځکه چې ملکي تلفات یا دچورلکو او نورو جنګي الوتکو دبمبارۍ او دتوپونو او هاوانونو او نورو غټو وسلو دکارولو په نتیجه کې رامنځته کیږي او یا دا چې انسان دنشي په حالت کې وي دملکي او نظامي توپیر نشي کولای نو جنګي الوتکې دوی سره دي توپونه هاوانونه او نوري غټې اسلحې دوی کاروي شراب دوی څښي چرس او پوډر دوی څکوي چې بیا دملکي او نظامي توپیر نشي کولای اوس دې نړیوال قضاوت وکړي چې دملکي تلفاتو عاملین څوک دي ؟او ایا څوکاله وړاندې دده بالا په ولسوالي کې دواده په ورا باندې بمباري ، دخوګیانو په هاشم خیلو کې دجنازي په یو موټرو باندې بمباري ، دبټې کوټ دشینواري کلا سیمه کې دطورخم جلال اباد په لویه لاره دسپرلیو په موټرو بې رحمه ډزي ، دبټې کوټ ولسوالي په مال منډي کې دلویې لاري پر سر په عوامو وحشیانه ډزې ، دسپین غر ولسوالي په قومي خلکو چې دیوي قومي شخړي په سر راټول شوي و ناتاره بمباري ، دسرخرود په کُرم کلي کې بمباري اودحصارک په ولسوالي کې په ملکي خلکو هاوانونه ویشتل او بمباري او همدا ډول دهیواد په ډیرو ولایاتو کې په عوامو وحشیانه بمباري او په مرمیو ویشتل ، دا هم مجاهدینو کړي ؟

لنډه دا چې دوی ددوست او دښمن دومره تفکیک نشي کولای حتی په ډیرو ځایونو کې یې په خپلو او اجیرو قواوو باندې هم بمباري کړې نو ایا دوی به دملکي خلکو دتلفاتو خیال وساتي ؟

دپوښتنې ددوهمې برخې په اړه په لنډه توګه یادونه کوم چې مونږ دملکي وګړو دحفاظت لپاره دومره زیار باسو چې حتی دډیر وداسې اهدافو دله منځه وړلو څخه صرف نظر شوي یو چې هلته دملکي تلفاتو داوښتو حتمال وي او خپل مجاهدین مو وخت په وخت دغونډو او لیکلو پیغامونو له لارې پوهولي چې دداسې عملیات څخه ډډه وکړي چیرته چې ملکي خلکو ته زیان رسیږي ځکه چې دا ملت زمونږ او مونږ ددې ملت یو زمونږ ملت ډیر ځوریدلی او کړیدلی باید ډیر پام ورسره وشي ، اوتل مودملکي تلفاتو دمخنیوي په اړه خپلو ټولو مجاهدینو ته دعالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله امر اورولی او په لیکلې بڼه مو ورته رسولی.

۲. **پوښتنه**: دننګرهاروالي صاحب ! تاسي ته بهتره معلومه ده چې که عام ولس له مجاهدینو سره همکارنه و ای ، نوسخته وه چې امریکا ، ناټواودهغوغلامانوته ماتې ورکړل شوي وای اومجاهدین له دومره نفوذاوسلطي څخه برخمن ګرځیدلي واي ، مطلب مې دادی چې له ولس سره په ننګرهارکې دمجاهدینوبرخورداوچلند څنګه ځیري ، یاني مشوري یې اوري ، په ستونزویې چې څومره موپه وس کې وي غورکوی ؟اوکه فرضادکوم مجاهد اودلګی له لوري په ولسي خلکو ظلم اوزیاتی وشي ، تاسي یې غږ اوفریاداوری کنه ؟

**ځواب** : دمجاهدینو رویه چال چلن او سلوک دعام ولس سره دا سلام او اسلامي امارت داصولو په رڼا کې سرته رسیږي خپلو ماتحتو ملګرو ته مو توصیه کړې چې دقومي مشرانو سره مشوري کوئ او مشوري یې اخلی.

مرکه کوونکی :خبیر احمد

د ننګرهار جهادي مسؤل محترم " سیرت " له څرک سره په مرکه کې :

# ننګرهار کې دښمن هیڅ وخت او په هیڅ ځای کې ارام ، مطمئن او مصئون نه دی

## دملکي وګړو دحفاظت لپاره ډیرځله دغلیم دډیرومهمومراکزودله منځه وړلو څخه صرف نظر شوي یو

دافغانستان داسلامي امارت په تشکیلاتوکې دننګرهارولایت محترم والي صاحب !

السلام علیکم ورحمة الله

الله تعالی موپه خپلو جهادي امورواوخدمتونوکې نورهم سرلوړی اوسرفرازه ولره.

په همدې هیله ، غواړودننګرهارولایت دروان خوځنده جهادي وضعیت په باب ستاسې مخ ته څو پوښتنې کیږدو، امیددی چې ځواب یې کړې اودفرهنګي کمیسون دنشراتي اوخپرنیزووسایلودمینه والواو لوستوالوتنده خړوبه وګرزوی. مننه

۱- **پوښتنه**: که په پیل کې دننګرهارپه عمومي جهادي حالت باندې رڼاواچوي چې مجاهدین دننګرهارپه سیمواوولسوالیوڅومره سلطه اوواک لري اودولس ورسره ترکومه بریده مرسته اوخواخوږي موجوده ده ؟

**ځواب** : الحمدلله وکفی والصلاة والسلام علی عباده الذین الصطفی وبعد ،

فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم
بسم الله الرحمن الرحیم

عَسَى رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ}الأعراف ۱۲۹

وړاندې تردې چې دپوښتنې ځواب ته ورښکته شو، سلام ته موو علیکم السلام ورحمت الله وبرکاته وایو !

الله رب العزت مو په خپلو اسلامي او داسلامي امارت لخوا په درسپارل شویو مقدسو دندواو دژوندانه په ټولو چارو کې موفق او بریالي لره.

دلومړۍ پوښتنې په ځواب کې باید ووایم چې دا پوښتنه په دریو برخو مشتمله ده اوله دا چې دننګرهار په عمومي جهادي بهیر باندې رڼا واچول شي دوهمه داچې مجاهدین دننګرهار په څومره سیمو او ولسوالیو سلطه او واک لري او دریمه دا چې مجاهدینو سره دولس تر کومه بریده مرسته او خواخوږي موجوده ده.

داولې برخې په اړه لله الحمد دتیرو کلونو په پرتله سږ کال دننګرهار جهادي حالت او بهیر خورا زیات په زړه پوري او ښه دی لکه دپچیر اګام ولسوالۍ کې دیوې چورلکې راغورځول او دجلال اباد په میدان هوایي دیوه تو غندییز برید په نتیجه کې دیوې چورلکې له منځه تلل ، دجلال اباد دامنیه قوماندانۍ ته مخامخ دچټک غبرګون په اکاډمي باندې دفدایي برید په نتیجه کې ګڼ دښمن ته درونډ مالي او ځاني زیان واوښت ، دسپین غر ماندرې

ته څېرمه او داچين په ولسواليو کې څه موده وړاندې دګڼ دښمن لويه قوه ددرندو تلفاتو په ليدلو سره په شا تمبول او دبټي کوټ ولسوالي دچهاردهي په سيمه کې دګڼ دښمن ستره قوه دزياتو تلفاتو په ليدلو سره دسيمې نه تيښتې ته اړ کول ، دده بالا او چپرهار په ولسواليو کې ددښمن دسترو قواوو په کراتوماتول ، دحصارک په ولسوالي کې دخارجي اوداخلي دښمنانو درې ورځني لويو عملياتو په مقابل کې کلک مقاومت چې بالاخره ددښمن په ستر زيان او ناکامۍ باندې تمام شول ، دطورخم او جلال اباد لويه لاره دمهمند درې ، غني خيل او بټي کوټ په ولسواليو کې ددښمن دنظامي قواو او اکمالاتي کاروانونو په وړاندې هر وخت بندول او تهديدول چې په نتيجه کې يې دښمن ته درانده مالي او زياني تلفات اوړي ، او په دا نږدې کې دخوګيانو او شيرزاد ولسواليو کې ددښمن ستره قوه مکمله ختمول ، حتی په بعضې ولسواليو کې ددښمن سره په شوارو زونو جګړې تر سره کول ، همدا رنګه دبټي کوټ په ولسوالي کې ددښمن دلويې لارې څلور پوستې او دچپرهار په ولسوالي کې يوه پوسته ديو زيات شمير عسکرو په وژلو او يو شمير غنايمو په نيولو سره فتحه کول ، دجلال اباد ښار د رينګ روډ په سر يوه پوسته ديوې درندې چاودنې په نتيجه کې په مکمله توګه له منځه وړل ، همدارنګه هغه ولسوالۍ چې تر ننه پورې خاموشه وې او يا هم پکې کوم دپام وړ کارونه نه و شوي لکه سرخرود ، بهسود ، دره نور ، خيوه ، کامه ، ګوشته ، رودات ، لعلپوره ، کوټ ، پچيراګام او دور بابا ، لله الحمد اوس پکې په دښمن دانفجاراتو او يا په تعرضي شکل منظم بريدونه کيږي ،

همدا راز دیادونې وړ ده چې دغني خيل په ولسوالي کې يوه تنکې ۱۲ کلن مجاهد د يوې برچې په واسطه يو امريکايي يرغلګر په ورميږ وواهه او ځاي پر ځاي يې وواژه.

پورته ذکر شوي عمليات هغه څه دي چې دننګرهار ولايت په جهادي بهير کې دچټکتيا ، پرمختګ او کاميابۍ ښکارندويي کوي.

دپوښتنې ددوهمې برخې په اړه بايد ووايم چې دننګرهار ولايت اړونده ولسواليو زياتې سيمې داسلامي امارت دمجاهدينو دولکې اوادارې لاندې دي يواځې او يواځې دولسواليو انګړونه او پوځي مرکزونه ددښمن په واک کې دي لکه: دنازيان ، اچين ، سپين غر ، ده بالا ، چپرهار ، بټي کوټ ، خوګيانې ، شيرزاد ، حصارک .

همدا راز د پچيراګام ، کوټ ، لعل پوره ، مهمند دره ، غني خيل ، رودات او سرخرود ولسواليو غرنۍ او اطرافي سيمې داسلامي امارت دمجاهدينو دحاکميت او کنترول لاندې دي.

بعضې نورې هغه ولسوالۍ لکه کامه ، خيوه ، دره نور ، ګوشته ، بهسود او دور بابا اګر چې دمجاهدينو تر سلطې لاندې نه دي مګر وخت ناوخت پکې دچريکې بريدونو تر څنګ په دښمن باندې انفجارات هم تر سره کيږي .

لنډه دا چې دننګرهار په ولايت کې دښمن هيڅ وخت او په هيڅ ځای کې ارام ، مطمئن او مصئون نه دی.

د پوښتنې ددريمې برخې په اړه بايد ذکر کړم چې لله الحمد دننګرهار باشهامته ولس داسلامي امارت دمجاهدينو سره په خورا زياته پيمانه مرسته او تعاون کوي که دولس ملاتړ مونږ ته حاصل نه وای نو داسلامي امارت مجاهدينو به دومره پراخ کنترول نه درلودای ، همدا وجه ده چې دتيرو کلونو په پرتله سږ کال ددښمن له لورې چاپې په سلو کې ۱۰ فيصده ته را کمې شوي ، په زياتره ولسواليو کې بعضو قومونو په پټه يا هم په علني ډول داسلامي امارت دمجاهدينو سره ملاتړ او حمايت اعلان کړی همدا وجه ده چې دامريکايانو او دکرزي دګوډاګي رژيم دزيات کوشش او په ولس باندې دزيات فشار سره سره بيا هم اربکي پروسه پياوړې نه ده .

۲ . **پوښتنه**: په دې ورستیوکې دننګرهار اړوند دخوګیاڼو او شیرزاد وولسوالیو په مربوطاتوکې له خارجي یرغلګرو او ددوی له غلامانو سره مجاهدینولویه جګړه ترسره کړه اودمعلوماتوله مخې دښمن ته پکې دروندزیان اوستره رسوایي واوړیده ، تاسې که په دې باب توضیحات راکړې ، چې ددغې پیښې اصلي علت څه وه ، مجاهدینوله څه ډول تکتیکونوکارواخیست اوغلیم ترکومې کچې وځپل شواواوس هلته مجاهدین په کوم حالت کې قرارلري ؟

**ځـــــواب** : باید ووایم چې دا پوښتنه په ثلورو اجزاؤو مشتمله ده :

اول جزء : دشیرزاد او خوګیاڼو ولسوالۍ دجګړې اصلي علت ؟

دوهم جزء : مجاهدینو دڅه ډول تکتیکونو کار واخیست ؟

دریم جزء: غلیم ترکومې کچې وځپل شو ؟

څلورم جزء: اوس هلته مجاهدین په کوم حالت کې قرار لري ؟

داول جزء په اړه: وخت ناوخت مجاهدینو ته داسې اطلاعات رسیدل چې دښمن خو میله اسلحه د شیرزاد په ولسوالي کې توزیع کړې او غواړي چې اربکې پروسه په کار واچوي دا چې مجاهدینو کوم دقیق معلومات نلرل په همدې خاطر یې کوم عکس العمل نه ښوده خو مسلسل دکره معلوماتو په راټولولو بوخت و ، څو ورځې وروسته (دورځې ) داسلامي امارت دمجاهدینو له جملې څخه دوه تنه پیاوړې مجاهدین هریو فضل ولد تور او عبدالله ولد حاجي روژه ګل دشیرزادو دمرکیخیلو دشنډې توت په سیمه کې په داسې حال کې چې په موټر سایکل سپاره و په ناڅاپي ډول دکمین سره مخ شول چې په نتیجه کې دواړه مجاهدین ورونه په شهادت ورسیدل دا چې ددوی په متقابلو ډزو دقاتلینو دډلې څخه یو تن (رفیق ولد وردګ ) زخمي شوی و او پاتې نور یې دپیښې دځای څخه وتښتیدل دا چې دمجاهدینو له پخوا څخه په نوموړې کورنۍ شک و چې داربکي ملیشو لپاره یې اسلحې اخیستې وې اوس نو مجاهدینو ته یقیني شوه چې نوموړې کورنۍ ددولت څخه داربکي ملیشو لپاره اسلحه اخیستې او نور هم په دې کوشش کې دي چې خلک داربکي ملیشو لپاره جذب کړي په همدې خاطر مجاهدینو ټوله سیمه محاصره کړه بالاخره زخمي دمجاهدینو لخوا ووژل شو او پاتې تښتیدلي کسان دحاجي وردګ کور ته ورغلل مجاهدینو نوموړی کور محاصره کړ دبعضو قومي سپین ږیرو په منځګړتوب یې ترې دقاتلینو دتسلیمیدو غوښتنه وکړه هغوی انکار وکړ او دمجاهدینو سره یې په مسلح مقاومت لاس پورې کړ مجاهدین مجبور شول چې نوموړې کلا دبرید لاندې ونیسي چې دغې جګړې یوه ورځ او شپه ونیوله ،دیادونې وړده چې په همدې شپه دخوګیاڼو دوزیرو په سیمه کې داربکیانو پوسته دمجاهدینوله لوري محاصره شوه دمحاصرې سره سمدستي اربکیانود پوستې څخه وتښتیدل مجاهدینو پوسته له کوم مقاومت پرته ونیوله ، ددوی دحمایت او خلاصون لپاره دکرزي د مزدورې اداري سرحدي لواء ، ملي اردو ، ملي پولیس ، دچټک غبرګون قطعه او دخوګیاڼو او شیرزاد ولسوالیو اربکیان دګڼ شمیر رینجر موټرو او ټانګونو او نورو جنګي وسایلو په مرسته سهار وختي دشیرزادود مرکیخیلو سیمې ته راورسیدل ددې قوې دراتګ سره سم دخوګیاڼو او شیرزادو ولسوالیو نور مجاهدین هم نوموړې سیمې ته راورسیدل او په جګړه یې لاس پورې کړ.

ددوهم جزء په اړه دومره وایم چې مجاهدینو دمختلفو تکتیکونو څخه کار واخیست لومړی مجاهدینو سیمې ته ورتلونکې دخوګیاڼو او شیرزادو ټولې لویې لارې وتړلې او هم یې دراتلونکو قواوو دځپلو لپاره دلارې په اوږدو کې کمینونه ونیول او هم یې انفجاري مواد ځای پر ځای کړل ددښمن راغلې قوه سیمه کې محاصره او دوتلو لاره ترې ورکه شوه ، لنډه دا چې دمجاهدینو اخلاص ، تقوی ، صبر ، وحدت ، اطاعت او په مبارکه روژه کې دومره لوړ همت کول هغه اسباب و چې الله تعالی خپل نصرت شامل حال کړ او دښمن یې دسترې رسوایۍ او ناکامۍ سره مخامخ کړ.

ددريم جزء په اړه درته دومره ويلی شم چې دجګړې په جريان کې دشيرزادو په مرکيخيلو سيمه کې ددښمن شپاړس عرادې رينجر موټرې روغې رمټې ونيول شوي ( چې وروسته يې ځينې وسوځول شوې او نورې يې مجاهدينو دځان سره بوتلې ) او دوه ټانګونه يې وويشتل شول وسوزيدل ، دخوګيانو دخدر خيلو په سيمه کې يو ټانګ او يو رينجر وسوزول شول او يو رينجر روغ رمټ ونيول شو . يو شمير عساکر يې ووژل شول او يو زيات تعداد نور يې ټپيان او څه نور يې دخلکو په کورونو ننوتل چې وروسته دکورونو څخه دوتلو په مهال يې بعضې ووژل شول او بعضو نورو يې يوې کلا ته پناه يوړه چې دمجاهدينو له لوري دسيمې دمخورو کسانو په منځګړتوب ترې دتسليمۍ غوښتنه وشوه هغوی دتسليميدو نه انکار وکړ مجاهدين مجبور شول چې دکلا په داخل کې دښمن باندې بريد پيل کړي په دې دوران کې ددښمن ډير عساکر ووژل شول او بعضې نور يې دشپې دتيارې څخه په استفادې وتښتيدل ،

ددښمن دمرستې لپاره خوګيانو ولسوالۍ لخوا نوره قوه راروانه وه چې دخوګيانو دقيلغو په سيمه کې ترې دوه رينجر دماينونو په واسطه انفجار کړای شول او دوه ټانګونه يې دخوګيانو دزاوې په سيمه کې وويشتل شول ، ددې مرستندوي قوې دشکست څخه بعد امريکايې يرغلګر دخوګيانو لخوا مرستې ته راروانه شوه چې دخوګيانو دزاوې دتور راغه په سيمه کې ترې يو ټانګ دماين په واسطه انفجار کړای شو ، نو ددې کبله يې جرآت ونکړ چې مخکې تګ وکړي بلکه ځای پرځای ودريدل او دشپې بيرته وتښتيدل.

دلومړيو معلوماتو په اساس دخوګيانو او شيرزادو په دغه ستره او مخامخ جګړه کې ددښمن ۸۴ کسان وژل شوي او ۸۹ تنه يې ټپيان شوي او دورستنيو معلوماتو له مخې دمړو شميره د ۱۰۰ تنو څخه هم زياته ښودل شوې ځکه چې داخترنه وروسته هم دجوارو په پټو او نورو پټنځايونو کې ددښمن مړې پيدا کيږي ، **۲۵** ميله غټه او وړه اسلحه او څلور پايې مخابرې او نور ګڼ شمير مهمات او پوځي توکي مجاهدينو په غنيمت نيولي.

برسيره پر دې چې دولس خلکو ددښمن څخه کومه وسله په غنيمت نيولې دهغې کره شميره معلومه نه ده ، دمرکيخيلو په سيمه کې ددښمن زيات شمير سوزول شوي رينجر موټر او ټانګونه اوس هم پراته دي ، دقيلغو او زاوې په سيمو کې ويجاړ شوي رينجر موټر او ټانګونه دښمن دځان سره انتقال کړي.

دجګړې دشروع نه تراخره پورې **۵** تنه مجاهدين دشهادت لوړ مقام ته ورسيدل او **۴** تنه زخميان شوي.

دپوښتنې دڅلورمې برخې په ځواب کې چې مجاهدين اوس په کوم حالت کې قرار لري وايم چې لله الحمد دمجاهدينو مورال او حوصله لوړه ده او دخوګيانو په اطرافي او دشيرزادو په ټولو سيمو کې حتی دولسوالۍ دتعمير په ۲۰۰ متری کې په هغه رينجر موټرو کې چې ددښمن څخه په غنيمت نيول شوي ګرزمې او هم پياده مسلح مجاهدين ګرزمې او پهرې ، دولس په منځ کې عادلانه فيصلې ، دولس دبچو دتربيت نظارت او ولس ته داصلاح او ددين او داسلامي امارت منافع ورپه ګوته او داسلامي امارت لوايح او فرامين عملي کوي.

۳ . **پوښتنه**: له شيرزادوسره په خواکې دحصارک ولسوالی په باب دکابل اجيررژيم له ډيره مودې راهيسې تبليغات کوي چې په حصارک اوازري ولسواليوکې يې پراخ تصفيوي عمليات پيل کړي اوګڼې سيمې يې له مجاهدينونيولې ، ښاغلی والي صاحب لطفاکه دحصارک ولسوالی په باب کې معلومات راسره شريک کړي چې اوس حالت هلته څنګه دي ؟

**ځواب** : ريښتيا هم دکابل اجير رژيم دحصارک ولسوالۍ ته دپراخ تصفيوي عملياتو لپاره خپل عساکر دزيات شمير هيلې کاپټرو په مټ دولسوالۍ

وداني ته نږدې ښکته کړل چې سمدلاسه دمجاهدينو له لورې دکلک مقاومت سره مخ شول چې ټوله ورځ سخته جګړه وشوه چې **۹** تنه ترې ووژل شول او **۱۵** نور يې سخت ټپيان شول دجګړې په جريان کې دښمن سخته بې رحمانه بمباري وکړه چې په نتيجه کې يې **۴** تنه مجاهدين ، درې تنه ملکي وګړي او درې تنکي ماشومان او يوه زنانه شهيدان شول او **۵** ماشومان او درې زنانه ټپيان شول. بيا هم مجاهدينو په پوره استقامت او شهامت خپلو سنګرونو او سيمو ته دښمن پرينښود ، دشپې دښمن څه عسکر دچورلکو په واسطه وليږدول او څه نور يې پاتې شول سبا ورځ دښمن دولسوالۍ دوداني څخه دهاوانونو په وسيله شاوخوا سيمې دبريد لاندې ونيولې چې ملکي خلکو ته پکې مرګ ژوبله واوښته او دمجاهدينو له لورې هم ورباندې د درندو وسلو بريدونه شروع شول چې دښمن ته يې ځاني او مالي تلفات واړول چې کره شميره يې په لاس کې نه لرو ، ددې نه وروسته دښمن جرآت ونکړ چې دپوځي ودانيو څخه دباندې راووځي او دمجاهدينو په لور حرکت يا جګړه وکړي ، او دمجاهدينو له لوري وخت ناوخت بريدونه پرې کيدل ، بالاخره دپراخو تصفيوي عملياتو لپاره راغلی دښمن څه دپاسه يوه مياشت وروسته دشوال دمياشتي په ۲۰ مه نيټه له يوې فاحشي ماتي سره مخ او له سيمې څخه په داسې حال دچورلکو په واسطه ووتل چې دمجاهدينو دبريد لاندې وه ، چې په دې ترتيب دمجاهدينو دواک سيمې لا پسې وغځيدې.

داچې دنړۍ مطبوعات او خبري رسنۍ ددښمن تر مستقيم تاثير لاندې دي نو هميشه داسې تبليغات کوي چې ددوی په نفع اوګټه وي دميډيا تبليغات هسې بې بنسټه دي بلکه حالات چې دښمن څنګه ارزول هغه ورته معکوس شول ددوی دارنګ پوچ تبليغات دخوګيانو او شيرزاد په ولسواليو کې هم دنياوالو ته په ډاګه شول او همدارنګه نړيوالو رسنيو کاروکوونکې کولی شي چې دحصارک ولسوالۍ ته لاړ شي تر څو حقايق په سترګو ووينې.

**۴. پوښتنه:** دجلال اباد ښار اوپه خاص ډول په هوايي ډګر اوهم جلال اباد - تورخم په لويي لاري دمجاهدينوكاري عمليات څه ډول ارزيابي کوي ؟

**ځــــواب** : وړاندې له دې چې دجلال اباد ښار او طورخم جلال اباد دلويې لاري دمجاهدينو کاري عملياتو باندې رڼا اچوو بايد ووايو چې په نوموړو ځايونو کې عمليات داسې حيثيت لري لکه ديو انسان په زړه ، سر او دملا په تير چې ګوزار کوې داچې دطورخم جلال اباد لويه لاره ددښمن داکمالاتو لپاره يوازينۍ لويه لاره ده چې دښمن پرې اکثرو ولاياتو ته پوځي او خوراکي توکي ليږدوي ددې لاري په نا امنه کيدو سره ددښمن ته سخته نظامي ، اداري ، اقتصادي ، سياسي او روحي ضربه رسيږي . نو په همدې وجه ورته زياته توجه پکار ده نو مجاهدين هم دخپل وس سره ورته قوي متوجه دي.

لکه مخکې مو چې هم يادونه وکړه دجلال اباد په ښار کې دګډ دښمن په چټک غبرګون قطعه چې دا يو دخارجيانو دروزنيزو مرکزونو دجملې نه دی فدايې عمليات او په دښمن وخت ناوخت انفجارات او په هوايې ډګر توغندييز بريدونه دمجاهدينو له لورې تر سره کيږي ، دطورخم او جلال اباد لويه لاره دبټي کوټ ، غني خيل او مهمند درې په ولسواليو کې په مکمله توګه دتهديد لاندې ده خصوصا دبټي کوټ په ولسوالي کې هر وخت او هر ځای يې دبندولو توانمندي لري حتی چې ځينې وختونه دلويې لارې څخه ددښمن رينجر او سراچه ډوله موټرې دمجاهدينو لخوا دغنيمت په توګه لاسته راوړل کيږي ، همدا راز لکه څنګه مو چې يادونه وکړه چې دبټي کوټ په ولسوالي کې دلويې لارې څلور پوستې فتحه شوي ، لنډه دا چې دطورخم جلال اباد په لويه لاره دښمن دنظامي ، اقتصادي او روحي فشار لاندې دی او ټولې چارې يې دځنډ او خنډ سره مخ دي.

**۵. پوښتنه:** محترم والي صاحب ، کله ناکله په ننګرهارکې دملکي تلفاتوراپورونه ورکول کيږي اودکابل

او په درانده نظر ورته ګوري ځکه چې دولس مرستې او ملاتړ ته د نظام ډیر ضرورت وي ځکه الله تعالی فرمايي:

{هُوَ الَّذِيَ أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ}الأنفال۶۲

{يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللّهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ}الأنفال۶۴

او دهمدې ولس په مرسته او ملګرتیا مونږ لله الحمد د بریالیتوب پړاو ته رسیدلي یو او افغاني ځوریدلي ټولنه هغه زخم ته ورته والی لري چې پټۍ او مرهم ته اړتیا لري باید د دوی خبرې او ستونزې واوري او په حل کولو کې یې ورسره پوره همکاري وکړي، مجاهدین د خپل اولس سره پراخه روابط لري مشورې یې اوري او په نیک نظر ورته ګوري، د مجاهد یا ډلګۍ مشر یا دیو مسؤل له لوري په اولس باندې د ظلم او تیرې برداشت او تحمل نشو کولای ځکه زمونږ مبارزه د الله ( جل جلاله ) د رضا او د اسلامي




نظام د قیام لپاره ده چې په هغې کې د ظالم مخنیوی او د مظلوم نصرت وشي تر دې چې ملت حتی د میان په آرامه فضاء کې د ژوندانه چارې پر مخ یوسي.

که احیانا کوم مجاهد یا مسؤل په اولس باندې ظلم زیاتی وکړي د اسلامي امارت د مربوطه مقام منګولو ته به یې وسپارو او د اولس د مظلومیت غږ ته مونږ په توره شپه لبیک وایو.

۷- **پوښتنه**: په ننګرهارکې اوس دښمن د دې لپاره چې دولس او مجاهدینو ترمنځ خدای مکړه بدګماني وزیږوي په کومو حربو او دسیسو کار او فعالیت کوي؟

**ځواب**: ریښتیا هم واقعیت دادی چې دښمن د اولس او مجاهدینو ترمنځ واټن او فاصلې پیدا کولو لپاره یو شمیر حربې او وسائل په کار اچولي تر څو د بدګمانۍ او بې اعتمادۍ فضاء رامنځته کړي د هغې له جملې څخه د کرزي د رژیم د استخباراتي ادارې او اربکیانو او د امریکایي جاسوسانو له لوري د طالب په جامه کې د خلکو تښتونې او په زوره د عشر او زکات اخیستنه یا د تلیفون او لیک له لارې د پیسو غوښتنه او د نه ورکړې په صورت کې په مرګ تهدیدول او یا وژل، په عامه ملکي ځایونو کې چاودنې همدا راز په مساجدو او مکاتبو کې چاودنې، وژنې او بریدونه، په لویو لارو کې د طالبانو په جامه کې د عوامو تالاشي کول او ربړول،

دا ټول هر هغه څه دي چې دوی یې د طالب په نوم تر سره کوي تر څو زمونږ او د اولس ترمنځ واټن رامنځته کړي خو لله الحمد د اسلامي امارت مجاهدین د دښمن دې ټولو توطیو ته پوره متوجه دي حتی په ډیرو ځایونو کې یې د دا ډول د سیسو مخنیوی کړی.

۸. **پوښتنه**: دا چې تاسې تازه د ننګرهار تاوده مورچلونه کتلي، که کومه داسې عجیبه خاطره چې یا تاسې لیدلې وي او یا موله مجاهدینو اوریدلې وي راته وکړی، لورینه به مووي؟

**ځواب**: دیوې تلپاتې او نه هیریدونکې خاطرې په اړه باید ووایم چې مونږ د ننګرهار ولایت د نازیان، سپین غر، ده بالا، شیرزاد او حصارک په ولسوالیو کې درنې او پراخه جلسې ترسره کړې چې تقریبا اووه اته ساعته به یې دوام کاوه، دا په داسې حال کې چې کلونه وړاندې چا دا فکر هم نشو کولای چې د هیواد د ننه

دې د اسلامي امارت مسؤلين دخپل اولس سره دومره په پراخه پيمانه غونډې ترسره کړي ، او دښمن په يوه ځای کې هم ونه توانيده چې زمونږ دا فعاليت کشف او مخنيوی يې وکړي ، داسې احساس مو کاوه چې هيواد مو نور دصليبي ښکيلاک څخه پاک او اسلامي امارت پکې حاکم دی. سوال به در درته پيدا شوی وي چې په دومره پراخه غونډو کې مو څه ويل غواړم چې په دې باب مختصر او اجمالي اندازکې توضيحات درکړم ، په هره جلسه کې به دمختلفو ولسواليو دمجاهدينو او مسؤلينو سربيره قومي مشرانو او علماء کرامو برخه واخيسته ديادونې وړ ده چې دجلسې افتتاح به دقران پاک دمبارکو ايتونو په لوستلو سره وشوه او بيا به تقريبا دوه يا درې ساعته دجهاد دبهبود او دساتنې داخلاص ، صبر ، تقوی ، کلک عزم ، استقلال ، وحدت ، اطاعت او په ولس باندې دمرحمت او شفقت اوداسلامي امارت دحقانيت او منافع او په اسلامي امارت باندې دتل لپاره دراټوليدو او دتنظيمي مفکوري داضرارو او خپلو مسؤليتونو ته دمتوجه کيدلو او دعاليقدر اميرالمؤمنين حفظه الله ورعاه هغه هدايات چې څه وخت وړاندې دولاياتو دمسؤلينو په نامه و ولوستل شول ، بيا به دملکي تلفاتو دمخنيوي په اړه داسلامي امارت دمحترم نائب هدايات ولوستل شول ، او بيا به داسلامي امارت درهبري شورا او مرکزي کميسيون لخوا هغه ليکلي هدايات لوستل کيدل چې پکې عامو مجاهدينو ته دخپل حفاظت او عوامو سره دښه سلوک په اړه ليکلي شوي و ، بيا به داربکي پروسې په نامه يوجوړ شوی مضمون چې پکې داربکي پروسې اضرار ليکلي شوي و او داولس څخه پکې غوښتنه شوي وه چې ددې پروسې دناکامي لپاره هلې ځلې وکړي ، او بيا به يواځې مسؤلينو ته دولايت لخوا ليکلي نظامي لارښوونې واورول شوي ، بيا اجتماعي جهادي ضروريات او مشکلات واوريدل شول ، ددې نه بعد جهادي سنګرونه وليدل شول.

همدا راز په هره سيمه کې دمجاهدينو نظامي حضورزياتوالي او په منظمه توګه ګرځيدل پهرې کول او دهغوی په منځ کې مينه او محبت ، همغږي او رابطې هغه څه و چې زمونږ ورسره ايمان تازه کيده ، دحيرانتيا وړ خبره داوه چې ددښمن چورلکې او نورې ډول ډول جنګي الوتکې به په هوا کې ګرځيدلو سره سره به مجاهدين په پوره اطمنان او لوړو حوصلو اوسيدل.

٩ . **پوښتنه:** جناب والي صاحب ، که دفرهنګي کميسون نشراتي اومطبوعاتي چارودبهبود په اړه څه مشوري ولري مهرباني وکړي ؟

**ځواب :** دفرهنګي کميسيون نشراتي او مطبوعاتي چارې خورا ښې او په زړه پورې روانې دي خوبيا هم ستاسې دغوښتنې په اساس غواړم چې يو څه عرض کړم:

لومړی: دا چې تاسې داسلامي امارت دمسؤلينو سره او دهيواد دمشهورو جيدو علماء کرامو ، قومي مشرانو ، دعصري علوموبا تجربه استادانو او دهغه اشخاصو سره چې سياسي بصيرت ولري وخت په وخت مرکې ترسره کړئ ، همدا راز داسلامي تاريخ او دافغان او انګليس دجنګ او افغان او او روس دجنګ او داوسنی صليبي ټلوالي پر خلاف دمقدس جهاد دمجاهدينو په زړه پورې کارنامې نشر ته وسپارئ او همدارنګه چې په نړيوالو مطبوعاتو کې داسلامي امارت په خلاف کوم تبليغات کيږي چې داولس ذهنونه مشوش کوي بايد ددې د رد لپاره سياسي پوهان جذب کړای شي چې په غير رسمي بڼه دراديوګانو دګردي ميزونو له لارې په مدلل ډول سره ځواب شي ترڅو عامه اذهان دحقايقو په درک سره روښانه شي.

زما په فکر دا هغه څه دي چې د فرهنګي کميسيون دنشراتي او مطبوعاتي څانګې دپرمختګ او بهبود لامل ګرځيدلای شي ان شاء الله.



# غـــــزل

درویش درانی

مجنون غوندې څه خلک ، دلیلا غوندې څه خلک
هـر دور دي لیـدلي ، مـا او تـا غونـدې څـه خلـک

لــه ښــاره دهنــدارو ســوداګر باســي پــه زوره
خپـل شـکل ویرولـي دي بـلا غونـدې څـه خلـک

زیـاتیږي ورځ پـه ورځ دلتـه د درد غونـدې وګـړي
پیـدا کـړي لویـه خدایـه د دوا غونـدې څـه خلـک

د اوښـکو پـه شـان تـت کانـدي نظـر زمـا د سـترګو
همـیش راځـي ومـا تـه د ژړا غونـدې څـه خلـک

ژوندی ده ، په ژوندون کې یې شک مه لره درویشه
لا شـته پـه دې ټولنـه کـې د سـا غونـدې څـه خلـک



اوس به په کومه لاره وځي
هیواد په هره لار زلمي ور ته لرینه

دسندر غاړې پیکاغږ دی
پــه دښمنانو اجلونه نڅوینه

دخپلواکۍ امام ترمخ دی
بیا اولسونه دسرونو نیت تړینه

دسپینو تورو په برېښناوو
د کفر وریځې له وطنه ګرځوینه

سپین طالبان ترشیدو سپین وو
دبم لوګویې توربخون کړل سپین مخونه

دترخوبي په غاړه جنګ ده
زیږي ځوانان په مرګي غیږې بدلوینه

هلمند کې ټولو توره وکړه
خو دسنګین له جبهې ګرده ورده شمه

بوشه په ټانګ دې مه نازېږه
په ریموټي بم یې ځلویښت ټوټې کومه



غرب اشغالگر به دالر خلقی قارون کرد ورفت — عده ای را هم به عیاشی دگر گون کرد ورفت
با دموکراسی و تبلیغات واهی روز وشب — مردمانی را تهی از دین و ملعون کرد و رفت
عفت از زنها و غیرت را زمردان کرد جدا — دختران را از حجاب و ننگ بیرون کرد رفت
با شعار محو کوکنار داد جهانی را فریب — خود تجارت برسر تریاک و افیون کرد ورفت
رهزنان و دین فروشان را به قدرت برنشاند — ظلم وغارت را اساس و درج قانون کرد ورفت
زرق و برقش عقل و فهم از عامی و عالم ربود — زور و تزویرش بسا خلقی که افسون کرد ورفت
از کمونست و مجاهد وز همه اضداد ورنگ — یک نظام کفری و بی دین معجون کرد ورفت
مردم دیندار را در هرکجای این دیار — یا اسیر و یاشهید در هر شبیخون کرد ورفت
از برای محو اسلام روز وشب بر بست کمر — آخرالامر دوست و هم پیمان جگر خون کرد ورفت
اقتدار و مال و شأنش را به جنگ مؤمنان — باشکست و روسیاهی ثبت و واژگون کرد ورفت
تاب ایستادن دیگر اینجا برایش چون نماند — ترک دوست و نوکر و یاران مدیون کرد ورفت
کرزی و کابینه و دلباختگان پر امید — جمله گی را ترک و آهنگ امازون کرد ورفت
تعبیر امنیت و صلح از شکست خویشتن — ادعاهای دروغ پشت تریبون کرد ورفت
لشکر خونخوار غربی هم بعون ذوالجلال — ملت مؤمن او را رسوا و مجنون کرد ورفت
ای سلحشور نیک و بد را تانمود ازهم جدا — حق تعالی امریکا را باب آزمون کرد ورفت

## انقلاب

عزت الله مخلص

انقلاب دی یرغلګر راباندې وژني
دا بد مخې بلواګر را باندې وژني
د روسانو لګری لا خاوري نه دي
اوس د غرب یاغي عسکر راباندې وژني
د یتیم فریاد مې دومره په غوسه کړي
هر ظالم هر اشغالګر راباندې وژني
دا غربي فرعون ولې نه پوهېږي
چې سرزوري جاودګر راباندې وژني
فدايي جذبه مې دومره پورته شوې
چې د غرب سوپر پاور راباندې وژني
دا زمونږ د شهیدانو انتقام دی
هر کافر هر ستمګر راباندې وژني
په عزت مخلصه حوړو سینګار کړی
خو د به مینه د ګودر راباندې وژني

## غزل

قاري سعید

بیا مې له ژونده دي راتاو د مرګ په خبر لاسونه
لکه ماښام له مازدیګره کړي چاپېر لاسونه
خدایه یوځوک درنه رښا غواړي دې تورو شپو ته
اول کړي لپه بیا په مخ باندې راتېر لاسونه
طالبه ! خدای خو دې نېزه له لاسه مه غورځوه
ګنې پرې تېښته به شي دستا په نامه ډېر لاسونه
وخت وو ، بې شمیر اورمیږونه مې تر ځنګ لاندې وو
ځکه ګریوان ته رالویدلي دي بې شمېر لاسونه
سعیده داچې د وطن غمشریکان یې بولي
ګنې یې لاس کې خو ورپورې د ګنېر لاسو

## تور پټکی

ته چې مرګ په ورین تندي اخستی نه شې
هغه مسته زندګي اخستی نه شې

چې د صبر سرمایه در سره نه وي
د غم ښار کې خوشحالي اخستی نه شې

د مجاز مکتب چې نه یې ناکام کړی
حقیقت کې کامیابي اخستی نه شې

ستا په عقل او شعور کې ډېر کمی دی
ته لقب د لېوني اخستی نه شې

چې په تورو زندانونو مئین نه یې
بیا نو سپینه ازادي اخستی نه شې

تا په سرو سترګو صحرا لوستلې نه ده
د جنون لویه هستي اخستی نه شې

ته به خنګه د ګلونو شونډې ښکل کړې
چې لاسونو کې اغزي اخستی نه شې

ستا په سترګو کې تصویر د ښکلا نشته
ته له ژونده بدرنګي اخستی نه شې

ځان به مړ ځان به ذلیل، ځان به تباه کړې
خو طالب نه مې مستي اخستی نه شې

ته په خپله په پلورلو اموخته یې
ته دا سپین او تور پټکي اخستی نه شې

ای په خپله بادشاهي باندې مغروره
د ( مفتون ) نه ملنګي اخستی نه شې

# مراء

لیک محمود غزنوي

المراء: مصدر یې ماریة، مراءو مماراةً راځي. معنی یې مجادله او شخړه ده، لکه چې ویل کیږي: دع المِراء لقلّة خیره. (له دې امله چې خیر یې کم دی، نو مراء، شخړه پرېږده) په یو قرائت کې د الله په کلام کې هم راغلی دی، الله تعالی فرمایي: " أفتُمارُوْنَه علی ما یَری " همداسي یو شاعر وایې:

أمّا المُزاحةُ والمِراءُ فدَعْهما ... خُلُقان لا أرضاهما لصدیقِ

ژباړه: هر څه چې مسخرې او مجادلې دي، دواړه ترک کړه- ځکه دا دواړه داسې خویونه دي چې زه یې د ملګري لپاره نه خوښوم.

بل شاعر بیا داسې وایې: إیّاكَ إیّاك المِرَاءَ فإنَّه ... إلی الشَّرّ دَعَّاءٌ وللِشَّر جَالِبُ پام کوه، پام کوه! ځان له مراء څخه وساته، ځکه دا سړی شر ته دعوتوي او شر ته یې جلبوي.

په روانه پېړۍ کې د مسلمانانو په منځ کې مراء یعني په دیني مسائلو، قرآن او حدیث کې د شک او احتمال په بنیاد جګړه او بې ځایه بحثونه وروستي برید ته رسیدلي دي. د دې کار ګڼ لاملونه کیدای شي، ګڼ کافران په دې هڅه کې دي، چې د مسلمانانو په منځ کې د اختلافاتو او جنجالونو تخم وشیندي او خپل حکومت پرې وکړي، د همدې موخې د لاسته راوړو لپاره یې ګڼې فرقې را منځته کړي.

مسلمانان په ناخبرۍ کې د کافرانو د دسیسې ښکار شوو، په خپل منځ کې یې کرکه او کینه په ستره کچه زیاته شوه، تر دې چې ځیني مسلمانان د نورو مسلمانانو په نسبت انګریزان، یهودیان، صلیبیان او هندوان خپل دوستان ګڼي خو له خپل مسلمان ورور سره د جزوې اختلافاتو له امله په یوه لاره نه ځي، د مسلمانانو د بې اتفاقۍ، پاتیوالی ستر عامل همدا بې ځایه اختلافات دي، کنه دا علمي اختلافات خو په صحابه کرامو او تابعینو کې هم موجود وو، ولې هغوی په خپل منځ کې شخړې او جنجالونه نه کول، علمي څېړنې به یې کولې، د یو بل درنښت او احترام به یې کول، په خپلو کتابونو کې به یې د یو بل نوم په خورا احترام له دعائیه الفاظو سره اخست.

په ګڼو ځایونو کې موږ ډیرۍ کسان لیدلي، چې د علم، تقوی او دیانت د نیستي او کموالي سره سره د یوې داسې دیني اختلافي مسئلې لپاره په شد او مد سره دلائل وایي کومه چې د صحابه کرامو او تابعینو په مهال کې هم موجوده وه، خو دوی خپل لوری سل په سله کې حق او مقابل لوری باطل ګڼي، د همدې موخې د پاره بیا مناظرې کوي، چې مطلب یې د حق ثابتول او د مسئلې شرعي څېړنه نه وي، بلکې هڅه کوي چې د خپلې فرقې موقف تائید او هغه حق ثابت کړي او مقابل لوری ناحقه او باطل.

رسول الله ﷺ د خپل امت حکیم دی، هغه ته خپل امت دا رنځ معلوم دی، نو ځکه یې خپل امت له دیني شخړو څخه منع کړی، ترټلی او داسې یې فرمایلي دي:

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: « لا یستکمل عبد حقیقة الإیمان حتی یدع المراء وإن کان محقا ویدع کثیرا من الحدیث مخافة الکذب »

ژباړه: یو بنده د ایمان حقیقت تر هغه مهال پورې نشي پوره کولای، تر څو له شخړو لاس په سر نشي، اګر که په حقه هم وي او د دروغو د احتمال له امله له ډیرو خبرو (حدیثونو) لاس په سر نشي.

په بل حديث کې يې داسې فرمايلي دي: «وجبت وجبت وجبت» فقال أصحابه: ما هذا الذي قلت يا رسول الله؟ قال: «من ترك المراء وهو محق بني له في ربض الجنة، ومن ترك الكذب بني له في ربض الجنة، ومن حسن خلقه بني له في ربض الجنة»

ژباړه: لازم شو، لازم شو، لازم شو اصحابانو عرض وکړ، يا رسول الله ﷺ څه مو وفرمايل: هغه وفرمايل: چا چې شخړې پرېښودې او دې پر حق وو، د هغه لپاره به په لاندې برخه د جنت کې ځای جوړ کړل شي، چا چې دروغ پرېښودو، د هغه لپاره به په لاندې برخه د جنت کې ځای جوړ کړل شي او چا چې خپل اخلاق سم کړل د هغه لپاره به په لاندې برخه د جنت کې ځای جوړ کړل شي.

همداسې رسول الله ﷺ خپل امت ته وايي چې علم د الله لپاره تر لاسه کړئ، دا کوشش مه کوئ، چې د علم په مټ له عالمانو سره جنجال وکړئ، ساده ګانو سره پرې شخړې وکړئ، يا د خلکو مخونه خپل لوري ته را واړوئ، چې د ستر عالم په سترګه مو بدرګه کړي، کنه نو الله تعالی به مو په اور کې داخل کړي. رسول الله ﷺ داسې فرمايلي دي:

«من طلب العلم ليجاري به العلماء أو يماري به السفهاء أو يصرف به وجوه الناس إليه أدخله الله النار»

همداسې بل ځای فرمايي: چا چې له علم څخه پرته په يوه شخړه کې جنجال وکړو، تر هغه مهال پورې به د الله په غضب کې وي، تر څو ځان ترې خلاص نکړي. په بل حديث کې يې بيا هغه کسان د الله تعالی مبغوض کسان ګرځولي چې سخت شخړې کونکي او جګړه مار وي.

«من جادل في خصومة بغير علم لم يزل في سخط الله حتى ينزع»

«إن أبغض الرجال إلى الله عز وجل الألد الخصم»

روايت دی چې لقمان حکيم خپل زوی ته داسې نصحيت کړی: «أي بني لا تعلم العلم تباهي به العلماء أو تماري به السفهاء أو ترائي به في المجالس» ژباړه: ای زويکيه! داسې علم مه تر لاسه کوه، چې پر علماوو پرې فخر کوې، له ساده ګانو سره پرې شخړې وکوې او په مجلسونو کې پرې ځان ښکاره کوې.

همداسې مکحول له محمد بن علي څخه روايت کوي: عن مكحول، عن محمد بن علي، قال: «لا تجالسوا أصحاب الخصومات فإنهم الذين يخوضون في آيات الله عز وجل»

له جګړه مارو سره مه کينئ، ځکه دوی هغه کسان دي چې د الله په آياتونو کې بې ځايه مباحثې کوي.

همداسې ابو جعفر وايي: ځان له جګړو څخه وساتئ، ځکه دا جګړې دين ختموي، بدبيني را منځته کوي او اجتهاد له منځه وړي.

قال: سمعت أبا جعفر، يقول: «إياكم والخصومات فإنها تمحق الدين» وحدثني من سمعه يقول: «وتورث الشنآن وتذهب الاجتهاد»

حضرت عمر بن عبد العزيز وايي چا چې خپل دين د جګړو لپاره هدف او مقصد وګرځول په داسې حال کې به مړ شي چې زيات تنقل او بدلونونه به يې په دين کې راغلي وي، يعني له زيات تنقل څخه دې مړ شي.

قال عمربن عبد العزيز: «من جعل دينه غرضا للخصومات مات أكثر التنقل»

ويل کيږي چې سليمان بن يسار چې به کله په کوم مجلس کې مراء (شخړه) واوريده، نو مجلس به حتما پرېښود. كان سليمان بن يسار «إذا سمع في مجلس مراء قام وتركهم»

ابو جهيم وايي: دوه کسانو د قرآن شريف په يو آيت کې اختلاف وکړ، دواړو دعوه کوله چې له رسول الله ﷺ څخه مو همداسې اوريدلی دی، دواړو له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه. رسول الله ﷺ ورته ځواب ورکړو، قرآن په اوو قرائتونو لوستل کيږي، نو تاسو په قرآن کريم کې مراء او شخړه مه کوئ ځکه په قرآن کريم کې مراء کفر ده.



قَالَ أَبُو جُهَيْمٍ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَلَفَا فِي آيَةٍ مِنْ الْقُرْآنِ فَقَالَ هَذَا تَلَقَّيْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ الْآخَرُ تَلَقَّيْتُهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْقُرْآنُ يُقْرَأُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ فَلَا يُمَارُوا فِي الْقُرْآنِ فَإِنَّ مِرَاءً فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ

**همداسي په ګڼو احاديثو کې راغلي چې په قرآن کريم کې مراء او شخړه کفر ده.**

**يو بل حديث کې له** انس بن مالک **او نورو صحابه کرامو څخه روايت شوی، چې** رسول الله ﷺ **د مراء په اړوند داسي فرمايلي دي:**

حدثني أبو الدراء و أبو أمامة و واثلة بن الأسقع و أنس بن مالك قالوا : خرج علينا رسول الله صلى الله عليه و سلم يوما ونحن نتمارى في شيء من أمر الدين فغضب غضبا شديدا لم يغضب مثله ثم انتهرنا فقال : مهلا يا أمة محمد إنما هلك من كان قبلكم بهذا أخذوا المراء لقلة خيره ذروا المراء فإن المؤمن لا يماري ذروا المراء فإن المماري قد نمت خسارته ذروا المراء فكفاك إثما أن لا تزال مماريا ذروا المراء فإن المماري لا أشفع له يوم القيامة ذروا المراء فأنا زعيم بثلاث آيات في الجنة في رباضها ووسطها وأعلاها لمن ترك المراء وهو صادق ذروا المراء فإن أول ما نهاني عنه ربي بعد عبادة الأوثان المراء وشرب الخمر ذروا المراء فإن الشيطان قد يئس أن يعبد ولكنه قد رضي منكم بالتحريش وهو المراء ذروا المراء فإن بني إسرائيل افترقوا على إحدى وسبعين فرقة والنصارى على ثنتين وسبعين فرقة ، وإن أمتي ستفترق على ثلاث وسبعين فرقة كلهم على ضلالة إلا السواد الأعظم قالوا : يا رسول الله ومن السواد الأعظم ؟ قال : من كان على ما أنا عليه وأصحابي من لم يمار في دين الله ومن لم يكفر أحدا من أهل التوحيد بذنب غفر له (الحديث)

ژباړه: انس بن مالک رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله ﷺ په داسې حال کې په موږ راغی، چې موږ په يوه ديني امر کې جنجال کول، نو هغه ﷺ داسې په قهر شو، چې هيڅکله مو هم داسې نه و ليدلی، بيا يې موږ ورټلو او داسې يې وويل: صبر! اې د محمد ﷺ امته! يقيناً له تاسو څخه مخکې خلک په همدې هلاک شوي دي، د ډېر خير لپاره يې مراء (شخړي او جنجالونه) غوره کړو،

شخړي پريږدئ! ځکه مؤمن جګړه مار نه وي.

شخړي پريږدئ! ځکه ماري (جګړه مار) له تاوان سره مخ وي.

شخړي پريږدئ! کنه نوستا دشخړو اومراء ګناه به ستالپاره کافي وي.

شخړي پريږدئ! ځکه دقيامت په ورځ زه دجګړه مار شفاعت نه کوم.

شخړي پريږدئ! نو زه په جنت کې د هغه د درې ښو ذمه وار يم، د جنت په لاندي، منځ او لوړه برخه کې.

چاچې شخړي پرېښودې هغه صادق دی.

شخړي پريږدئ! ځکه د بتانو له عبادت څخه وروسته لومړی زه له شخړو او شراب څښلو څخه منعه کړی شوی يم.

شخړي پريږدئ! ځکه شيطان له عبادت څخه نااميده ده، ولې هغه له تاسو څخه په تحريش او شخړو باندي خوشحالېږي،

شخړي پريږدئ! ځکه بني اسرائيل يو اويا فرقې شوي وو، عيسايان دوه اويا فرقې شوي وو او زما امت به په درې اويا فرقو باندي تقسيم شي، له سواد اعظم څخه پرته ټول به ګمراهي کې وي، صحابه کرامو عرض وکړو، سواد اعظم څوک دي؟ ويې فرمايل: داسې خلک، چې په هغه لار روان وي، په کومه چې زه يم او زما اصحابان دي، داسې خلک: چې د الله جل جلاله په دين کې شخړي نه کوي (لانجمار نه وي)، هغه خلك! چې د بښني وړ په ګناه د توحيد اهل نه کافر کوي،

**په همداسي توګه د امت ټول عالمان تاکيد کوي، چې متحد اوسئ او تفرق څخه ځانونه وژغورئ، د ځان ځاني له بحثونو څخه ځانونه وساتئ، تر څو چا د دين له ضرورياتو څخه انکار نه وي کړی کافر او مشرک ورته مه وايه. ځکه په تفرق او اختلاف کې د مسلمانانو د تباهی او د دښمن له کاميابی څخه پرته بله هيڅ ګټه نشته.**

وقد أكد علماء الأمة وجوب التزام الجماعة وترك الخلاف والتفرّق لكونه يضرّ ولا ينفع ويهدم ولا يبني ويخرّب ولا يصلح، يقول ابن أبي العز الحنفي في عقيدته:

﴿ونرى الجماعة حقاً وصواباً، والفرقة زيغاً وعذاباً﴾.

ژباړه: د امت علماء په دې خبره ټینګار کوي، چې له جماعة سره ملګري شئ، اختلاف او تفرق پریږدئ، ځکه په هغې کې هیڅ ګټه نشته، اسلام ته نقصان رسوي او له منځه يې وړي، د آبادي په ځای تخریب را منځته کوي او هیڅ قسم اصلاح نه راولي.

ابن ابي العز الحنفي **په خپله عقيده کې وايي:**

موږ په یووالي کې حق او صواب وينو = په جداوالي کې ګمراهي او عذاب وينو

محمد بن الحسين **وايي:**

رحم الله عبدا حذر هذه الفرق ، وجانب البدع ولم يبتدع ، ولزم الأثر فطلب الطريق المستقيم ، واستعان بمولاه الكريم

ژباړه: الله ﷻ دې په هغه بنده رحم وکړي، چې له دا ډول ډلو څخه ډاريږي، له بدعت څخه ځان ژغوري، بدعتې نه جوړيږي، د صحابه کرامو او اسلافو په اثر روان وي، نو ده صراط مستقیم طلب کړه او له کریم څښتن څخه يې مرسته وغوښته.

**روايت نقل شوى چې** رسول الله ﷺ **فرمايي:**

﴿فَإِنَّ يَدَ اللَّهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ يَرْكُضُ﴾

ژباړه: د الله تعالی ﷻ **مرسته له جماعة سره ده، شيطان له هغه چا سره ملګرى او ګرځي، کوم چې ځانته شوى دى.**

د رسول الله ﷺ **له ارشاد سره سم بايد مسلمانان له مراء او شخړو څخه چې په پايله کې يې اختلاف او جداوالى را منځته کيږي ځانونه وژغوري، د مسلمانانو وحدت ته زيان ونه رسوي، له سواد اعظم يا جماعة سره ملګري شي. له مطلق اختلاف څخه ځان وساتي او له داسي اختلاف څخه چې د صحابه کرامو او تابعينو په منځ کې هم وو، په طريقه اولى ځان وساتي. يو ملګرى په يو مسجد کې امام دى، ټول مقتديان د خفيه امين طرفدار دي، يو کس پکښې جهري امين والا را پيدا شو، په جهري امين او اته رکعتونو تراوو باندي خبره ستر جنجال، اسلافو ته ښکنځل، وهل ټکول، د مسجد بې عزتي، پوليس او آن مرو او دښمنۍ ته ورسيده.**

د رسول الله ﷺ **له ارشاد سره سم يې دين د تعمير په ځاى تخريب کړ او د ګټې پر ځاى يې نقصان ورته واړول او مرتکب د کبيرې ګناه هم شو، همداسي په سلګونو پېښې هره ورځ را منځته کيږي. يا ښه مثال يې د روژو او د اختر دى، چې هر لورى خپل اختر او روژه په حقه ګڼي او د مقابل لوري بې ځايه او عبث، نو ځکه خلک يو بل ته وايي چې د اختر په ورځ خو د شيطان روژه وي، هغه بل بيا ورته وايي چې تا فرضي روژه وخوړه قضايي يې راوړه او داسي ګڼ نور. له پورته ګڼو احاديثو څخه ثابته شوه چې مراء او شخړې منع دي، شخړې او فساد کونکې کس ته د خپلې مراء ګناه د جهنم اور ته د ليږلو لپاره کافي او بس ده.**

**يو کس دې د مجلس، مسجد او ماحول د اکثريت وګړو په خلاف دې د فتنې په صورت کې په اختلافي مسئله عمل نه کوي، او د مقابل لوري احترام دې وساتي. په ټول امت کې له** رسول الله ﷺ **څخه ثوک غيرتي نشته، هغه د خپل قوم د فتنې د رامنځته کيدو د احتمال له امله حطيم چې د بيتې حصه ده په بيته کې داخله نکړه. حضرت عائشې ته يې وفرمايل: که زه ستا د قوم له فتنې څخه نه ډاريداى نو حطيم به مې ارو مرو په بيت الله کې داخل کړى واى. چې** رسول الله ﷺ **سره له خپل شجاعته او دا چې هغه شارع دى، په دومره ستره کچه محتاط دى، نو ته بيا ثوک او څه کاره يې چې په اختلافي مسئله کې ستره فتنه را منځته کوې او ترينه نه تيريږې او په سلګونو مسلمانان په غم اخته کوې؟**

**هم همدې ځوانانو د انګليسانو په خلاف جهاد کړى او استقلال يې تر لاسه کړى، په تير لنډ تاريخ کې دوه نړيوال**

راټولوونکی :خ-د



# د شهید مولوي عزت الله عارف

# ژوند او کارنامو ته لنډه کتنه

دکاغذپه مخ مې پور ته ییت دیوداسې شخصیت په باره کې ولیکه چې هغه داسلام په غم غمجن اود مسلمانانو په درد دردمند، داتفاق اواتحاد په هیله دسیدجمال الدین افغان اومولاناعبیدالله سندهی په څیرملنګ ، دمسلمانانودازادی اوخپلواکی دقافلومخکښ اوپه عین وخت کې دعلمي ، سیاسي اوجهادي میدانونونومیالی اتل ، په نبوي اخلاقوباندې مزین ، همیشه یې په خوله باندې مسکا، نوراني اودروڼ تندي څښتن ، های ! څومره عظیم انسان ووچې دسختوتکالیفواومصایبوپه وخت کې هم دصبراوزغم نه پرته پکې بل هیڅ نشولیدل کیدای .

دعلم ، عمل ، سیاست اوجهاددا ځلانده ستوری دافغانستان دننګرهارولایت دچهاردهي اوسیدونکی چې دخپل نوم نه زیات په خپل تخلص (عارف صیب ) باندې مشهوروو

مرحوم مولاناحافظ محمدعزت الله (عارف ) نورالله مرقده ، دننګرهارولایت دمشهورجهادي اوعلمي شخصیت مولاناعبدالکافي رح ځوی په ۱۳۴۶ه ش کال چهاردهي کلي کې زیږیدلی ، ابتدایي زدکړه یې د خپل کلي په جومات اوښوونځي کې ترسره کړه ، له هغه ورسته دمتوسطې دورې دپاره دبهتي کوټ ولسوالی ، دفارم غازي اباد په ښوونځي کې داخل شو.

ورسته دجلال اباد په مشهوره دیني مدرسه نجم المدارس کې داخله واخیسته هلته یې ایله یو کال زدکړه پوره کړې وه چې دروسي پلوه ګوډاګي رژیم لخوادګران هیواد په حقاني علماووظلمونه شروع شول، چې پکې دنجم المدارس دمدرسې جیداستاداودعارف صاحب نیږدې خپل ( مولوي غلام سبحاني ) سره دخپلو نورو ملګرو مدرسینو دظالم اوبې دینه حکومت لخوا ګرفتار شو، له بل لوري دمرحوم عارف صاحب والدګرامي چې دسیمې یومخورمشر ، عالم اولوی مجاهدووپه هیواد کې داوسیدودایره پرې تنګه شوه نوګاونډي هیواد پاکستان ته سره له کورنی په ۱۳۵۸ کال کې په هجرت کولو مجبوراوداوسنی خیبرپښتونخواایالت اړوند دمهه مغل خیل په سیمه کې خپل قوم سره یوځای کې میشت شو

## دیني زدکړې

شهیدمولوي عزت الله عارف صاحب چې دمرحوم مولوي عبدالکافي صاحب کشری ځوی ووهغه یې داسلامي علومودزدکړې لپاره په کال ۱۳۵۹ ش کې ددارالعلوم احناف امیرزو مدرسه کې داخل کړ اوړومبی درجه کتابونه یې هلته وویل ، دویمه درجه یې دتنګي په دارالعلوم اودریمه درجه کتابونه یې بیر ته داحنافوپه دارالعلوم کې ولوستل ، ، څلورمه درجه یې دتخت اباد په دارالعلوم هدایت الاسلام کې ، پنځمه درجه یې دپیښور د باړې په دارالعلوم

هاشمیه کې دوخت لـه مشهوروعلمای کرامو هریـو سیدقریش باباوقاضي محمدامین صاحب نه وویله ، په دغه کال دخپل جهادي شـوق لــه مخــې دمدرســې دطالبانودقومنــدان پــه حیــث دهیوادددنامتوجهـادي مشـر مولـوي جـلال الـدین حقـاني جبهوتـه دجهادلپاره له لسګونوملګروسره دهغه وخت دجهادتاوده سنګرد( د پکتیاستوکندو) ته ولاړ .

تکمیلیه درجه یې دطورودارالعلوم سعادت خان مدرسه کې پـه ښـه شوق اوذوق دمولانـاغلام محبوب صـاحب نـه ترسـره کـړه ، ریاضي اودفلسفې زدکړې یې دغزني ولایت لـه مشهورعالم دیـن مولانامحمدمستقیم صاحب نه ترلاسه کړي، میراث علوم یې دمردان په بخشایي کې دمیراثي باباڅخه ولوستل ، موقوف علیه دورې لپاره بیادارالعلوم هدایت الاسلام تخت اباد تـه راغی اوهلتـه یې کتابونـه لـه شیخ الحدیث مولناعنایـت الله صـاحب (فاضـل دیوبنـد) اوشیـخ الحدیث مولانامطلع الانوار صاحب ( فاضل دیوبند) څخه وویل ، لویه دوره یې پـه کال ۱۹۸۹م کې داکوړې پـه حقانیـه دارالعلوم کې پـه داسې حـال کې ترسـره کـړه چې دسـوونوطالبانوله جملې نـه هغـه دمسلم شریف اوترمذي شریف قـاري غوره شوی وو، همدغـه ډول یې دلوی دورې پـه دریوواړوامتحـانوکې لوړې نمبرې اودویمـه نمره ګی حاصله کړې وه چې پـه ډیرامتیازسره دنامتواستادانوله لوري ورته دفضلیت دستاروپه سر کړای شو.

دقران مجید تفسیراوترجمه یې د پښتونخوا پـه صوابۍ کې لـه شاه منصوربباجی رحمـه الله څخـه وکـړه ، دغـه ډول یې دقرانکریم حفظ له قاري سیدغني صاحب څخـه وکـړ ، دیـادونې وړ ده چې عـارف صاحب تـه دخپلې قوي حافظې پـه برکت الله تعالی دټول قرانکریم دحفظ توفیق په ۳میاشتوورپه برخه کړي وو.

## تدریس :

دفراغت په اول کال یې دپیښور دفقیرابادپه ( رشیدیه ) مدرسه کې ددریمـې ، څلورمې اوپنځمې درجې کتابونـه تـدریس کـړل ، دهمـدې کـال پـه پـای کې سـعودي عربسـتان تـه ولاړ اوالله تعـالی دعمـري اوحـج سـعادت ورنصیب کـړ ، دفراغـت پـه دوهـم کـال دامــدادالعلوم دمشــهورې مدرســې داســتادکل شــیخ الحــدیث شهیدمولناحسـن جـان مـدنی رح پـه درخواسـت اولطـف پـه نومـوړې مدرسې کې دممتازواستادانوپه جمله کې شامل کـړل شواوپه زړه پورې تدریس یې وکړ ، په دریم کال یې دنمک منډیی دقاري فیاض صاحب په مدرسه کې داستادپه حیث په داسې حال کې چې یوزیات شمیرشاګردان ورسره ووومنل شواوتدریسي کال یې سرته ورساوو .

## جهادي اوسیاسي ژوند :

شـهیدعارف صـاحب چـې داسـلامي ټـولنې یـوبې ریاخـادم اودعملي ، جهادي اوسیاسي فکراوعمل نه مالامال شخصیت وو ، کله به یې دسروروسانوپه مقابل کې دجهادګرم سنګرته ځان رسولو، کله به دمسلمانانوترمنځ دوحدت اوخیرخواهې هڅې کولې اوسـتره هیلـه یـې داوه چـې مسـلمانان بایدپـه خپلـو منځـوکې متحدوروښـه اودیوه شعاراوهدف څښتنان وي

عارف صاحب کله چې خپل منځي تنظیمي جګړې په هیوادکې پیـل شوې وي دهغودخاموشولواودسولې اوروغې دراوستوپه هیلـه یوځـل داتحادعلمای افغانستان له مشرمولوي عبدالله ذاکري اوبل ځل دمولوي جلال الدین حقاني سره یوځای سفرونه کړي وو .

هر کلـه چې انقلاب اوړدشواودهجرت پـه کور کې دمهاجرینوپـه کمپونـوکې یوشمیرفسـادونه رامنځتـه شـول نوهغـه دخپلـو اسـتادانوپه مشوره اودملګروپـه مرسـته پـه کمپونـوکې یودعـوتي اواصلاحي منظمـه جوړه کړه چې علمای کراماو دطالبانو اومخلصومسلمانانوباندې مشتمله وه اودامربـالمعروف ونهـی عـن المنکردنـده اوخـدمت یـې دکمپونوپـه مساجدودجلسواودعوتي ناستوپه شکل کې سرته رساوو.

ددعواصلاحي هڅونتیجه داشوه چې دافغانستان پـه هرولایت کې داهل سنت والجماعت پـه نوم منظمې جوړې شوې اودهرولایت طالبانواوعلماوو کرامودخپـل ولایـت پـه نـوم دفسـاداومختلفو فتنوپـه خلاف دعوتي اواصلاحي هلې ځلې جلسې اوعلمي غونډې وخـت پـه وخـت دایرولې ، چـې بـالاخره الله تعـالی همدغـه اصـلاحي ولایتـي ټولې چې پـه اخلاص سره یې رادانګلې ووډیوه سرتاسري جهادي یون اومخلصانه حرکت ځواک اوفهم ورواښه .

دشهیدعارف صاحب دځانګړي کردار په پایله کې دټول افغانستان په سطحه داهل سنت والجماعت اتحادیه رامنځته اونوموړی اتحادیه دمسلمانانواومجاهدینو دخپل منځي شخړ وداواري اوله منځه وړلو په برخه کې ستررول ولوباوه ،نوشهیدعارف صاحب ترپایه دنوموړي اتحادیې دمرکزي شوراریس اومشر وو.

کله چې په ۱۹۹۴ کال د۱۱ میاشتې په ۱۳ نیټه په کندهارولایت کې دعالیقدرامیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد حفظه الله ترمشرۍ لاندې دافغانستان دطالبانو اسلامي تحریک اعلان اوعملايي دفساداومنکراتوپه خلاف یې مبارزه اوجهادپیل کړ، نوشهیدعارف صاحب هغه څوک ووچې دخپلې اتحادیه اجلاس یې دپیبنورپه ( دارالقراء مدرسه ) کې راوغوښت او دافیصله یې په ډیراخلاص سره وکړه چې دافغانستان دطالبانو له اسلامي تحریک سره یوځای کیږواومرسته به یې کوو، هماغه ووچې عارف صاحب خپل تدریس ته دپای ټکی کیښوداو داهل سنت والجماعت دزیاتره ولایتي مشرانوپه ملتیایې قافله کندهارته ورسیدهاو هلته یې له محترم ملامحمدعمر مجاهدسره بیعت ترسره اواعلان کړ.

دعارف صاحب نیږدې ملګری اوداسلامي امارت په مهال دسرې میاشتې دټولنې مشربشاغلي مولوي عصمت الله عاصم وايي چې کله مونږ له جناب عالیقدرامیرالمومنین سره بیعت ترسره کړزمونږ په ډله کې دمشرقي ولایتواکثره طالب مشران ملګري لکه ( مولاناعنایت الله برهاني صاحب ، مولوي نورجلال جلالي، مولوي عزت الله حقاني ، مولوي نجیب الله حقاني، مولوي عبدالقدیر صاحب ، مولوي رستم حنفی، مولوي رحیم الله حقاني اومولوي رحمت الدین ) شامل وو .په دغه وخت کې مولوي عبدالباقي حقاني دملګروپه مشوره په پیښور کې دملګرودتنظیم اونشکیلاتوبرابرولو په منظورغوره اوپاتې شوي و ، عاصم صاحب وايي مونږ ټول ډیرخوشحاله اوپه جاموکې نه ځایدو، خوعارف صاحب دومره متاثره ووچې ترډیره وخته به یې ویل چې افغانانواوپه خاص ډول علمای کراماوطالبانوچې دکوم امیر تلاش کاوو هغه اوس الله تعالی پرې لوورولی دی.

ځرنګه چې الله تعالی عارف صاحب ته داستعداداو اطاعت ځانګړې خزانې اوانعامات وربښلي ووپه عالیقدر امیرالمومنین اومرحوم ملامحمد رباني صاحب اونورو مشرانوباندې خوراګران اوشفقت به یې پرې کاوه ، ددعوت اوجلب کاربه یې ځینې اخیسته ،سیاسي او اداري امورو په برخه کې به یې مشورې ورځخه اخیستې دختیځوولایتونوله ولس دارتباط اوهلته دتحریک دورتګ دزمینه سازۍ په باب به یې دعارف صاحب رول اواغیزته په درنه سترګه کتل .

خوالله تعالی ته مقدره اومحبوبه داګرځیدلې وه چې د بصیرت ، تقوا، عرفان او کمال دغه ستوري نورله دې فاني دنیاڅخه ابدي دنیاته غوارې اولدې هسکه یې راتیټول غواړي ، هماغه ووچې دملاصاحب حفظه الله اودحاجي معاون صاحب رحمه الله په مشوره عارف صاحب سره له ګڼوملګرودنیمروزولایت ته واستول شوترڅوهلته دنوموړي ولایت اداري اوجهادي امور تنظیم اوهلته یوه اداره جوړه کړي ، خوچون داسلامي امارت هرملکي نظامي وي اوهرنظامي ملکي اوله هریوه تن اومسول سره دااحساس وي چې څنګه مصدر دخدمت اواطاعت وګرځي ، نوعارف صاحب به هم دولایت دنورواموروډیرمخ بیولو ترڅنګ په جهادي اوعملي برخه کې هم فعاله برخه اخیستې

هماغه ووچې په نیمروزولایت دشر اوفساددلښکرو له لورې دیوه سخت تعرض او مخامخ جګړې په نتیجه کې جناب عارف صاحب د۱۹۹۵م کال دمې میاشتې په ۱۵ نیټه دلوی اخترپه ۴ ورځ دشهادت لوړمقام ته ورسید( اناالله وانااليه راجعون )

دیادونې وړده چې دعارف صاحب په داسې حال کې شهیدشوچې له نیمروزولایت څخه طالبانوعقب نشیني کړې وه ، کله چې په دوهم ځل دنیمروزولایت فتح شو، نوبیادعارف صاحب ددفن ځای پیدااوجسدمبارک یې ړومبی کندهارته نقل اوبیادهغه والدګرامي په ډیراصرار خپل ابایي سیمې چهاردهې ته راوړل شو، الله تعالی دې ددغې عظیمې هستې جهادي اوعلمي کارنامې ، سیاسي اواجتماعي خدمتونه په خپل دربارکې قبول وګرځوي ،لاردې له لارویوډکه اوجنت الفردوس دې یې نصیب وګرځي امین

## دژوندورستی ورځي :

# جبل‌الطارق؛ کوه اختلاف میان اسپانیا و انگلیس

منابع خارجی

تنش میان اسپانیا و انگلیس بر سر تنگه جبل‌الطارق بار دیگر به اوج خود رسیده است. اختلاف میان اسپانیا و مقامات انگلیسی جبل‌الطارق زمانی دوباره بالا گرفت که دولت محلی این منطقه طرح خود را برای ساخت یک صخره مصنوعی در دریا اعلام کرد. این، برای مقامات مادرید به معنای آن بود که آنها می‌خواهند با ساخت این صخره، مانع از ورود کشتی های ماهیگیری اسپانیا به آب‌های آزاد شوند. از این رو، اسپانیایی‌ها نیز دست به کار شدند و تردد وسایل نقلیه میان مرز اسپانیا و جبل‌الطارق را تحت کنترل شدید خود در آوردند.

آنها همچنین قصد دارند به عنوان بهای مرزی ورود و خروج، عوارض 50 یورویی برای هر وسیله نقلیه مقرر کنند و همچنین حریم هوایی خود را به روی هواپیماهایی که به مقصد فرودگاه جبل‌الطارق پرواز می کنند، ببندد. این امر واکنش تند مقامات انگلیسی منطقه را برانگیخت تا آنجا که یکی از مقامات جبل الطارق، این رفتار اسپانیا را به کره شمالی تشبیه کرد. اما اسپانیایی‌ها هدف از این بازرسی‌ها را مبارزه با قاچاق اعلام کردند.

اما ماجرای درگیری این دو بر سر جبل‌الطارق به 300 سال پیش باز می گردد یعنی از جولای سال 1713 میلادی تاکنون. جبل الطارق نام عربی کوهپایه‌ای شبه جزیره‌ای است که با دامنه آن مساحتی 6.5 کیلومتری را در بر می گیرد. این کوه واقع در بخش شمالی تنگه جبل‌الطارق و متصل به خاک اسپانیاست.

نام این تنگه از سردار مشهور اسلام، «طارق بن زیاد» گرفته شده است که از این تنگه به خاک اسپانیا حمله برد و دولت اسلامی را در جنوب آن کشور تشکیل داد. این منطقه قرن‌ها تحت سلطه مسلمانان قرار داشت و در اواخر قرن پانزدهم میلادی با وحدت اسپانیا و بیرون رانده شدن آخرین بقایای خلافت اندلس، تحت کنترل دولت مرکزی اسپانیا درآمد.

جبل الطارق سرانجام متعاقب جنگ‌های سال 1704 میلادی به اشغال انگلیسی‌ها در آمد و این اشغالگری در سال 1713 بر اساس پیمان تحمیلی «اوترحت» رسمیت یافت. تلاش اسپانیا برای باز پس گیری جبل‌الطارق از طریق محاصره 3 سال و نیمه این منطقه با کمک نیروهای فرانسوی، طی سال‌های 83 – 1779 موفقیتی در پی نداشت. پیشنهاد

او همچنین بار دیگر تاکید کرد که حاکمیت انگلیس بر جبل‌الطارق غیر قابل تغییر است. البته سازمان ملل متحد نظر دیگری دارد. این نهاد بین‌المللی این منطقه راهبردی را که مشرف به ورودی اقیانوس اطلس به دریای مدیترانه است، در فهرست «مناطق منتظر برای استعمارزدایی» قرار داده و به طور رسمی جبل الطارق را یکی از 10 قلمرویی قلمداد می کند که انگلیس به طور غیر قانونی آنها را اشغال کرده و پرونده حاکمیتی این اراضی تا زمانی که لندن آن را به صاحبان اصلی‌اش بازنگرداند، گشوده خواهد ماند.



متعاقب انگلیس برای تعویض جبل‌الطارق با بخش دیگری از سرزمین اسپانیا، از سوی مادرید نیز رد شد.

در رفراندوم سال 1967 نیز بر اساس ادعای وزارت کشور انگلیس، غالب اهالی جبل‌الطارق به حفظ ارتباط نزدیک خود با انگلیس رأی دادند. با این وجود، مادرید سال‌هاست خواهان مالکیت مجدد بر جبل‌الطارق است.

اما اینکه چرا این دهکده از این اندازه اهمیت برای اسپانیا و انگلیس برخوردار است، به موقعیت استراتژیک آن باز می گردد زیرا این اراضی تنها مسیر آبی بین دریای مدیترانه و اقیانوس اطلس محسوب می‌شود.

از این رو بود که وقتی اسپانیا کنترول خود بر مرزها را افزایش داد، به دلیل کُند شدن تردد و تاخیر در جابه‌جایی افراد، فریاد انگلیسی‌ها برآمد. دیوید کامرون، نخست وزیر انگلیس پس از تماس تلفنی با «ماریانو راخوی»، همتای اسپانیایی خود اعلام کرد: «بین مردم جبل‌الطارق و اسپانیا اختلاف بر سر ماهیگیری وجود دارد و نیاز دارد تا حل و فصل شود و ما توافق کردیم که چنین شود. تشدید کردن این موضوع به روشی که انجام گرفته، درست نیست.»

## حضرت رابعه بصري رحمها الله

۱ ـ لکه شمعه چې ځان وېلې کوي او نورو ته رڼا وربښي تاسې هم ځان دهغې په څېر وسوځوئ چې نورو ته مو ګټه ورسيږي.

۲ ـ سترګه که برېښوه هم ده د نورو جسمونه پټولی شي.

۳ ـ په دې کې شک نشته چې يوه ښځه هم پيغمبره شوې نه ده، خو په ياد ولرئ چې د خدايي دعوه يې هم نه ده کړې او ټول پيغمبران، وليان، صديقين او شهيدان د همدوی په غېږ کې ستر او رو زل شوي دي.

۴ ـ خپل زړه په خپل لاس کې ساتل او د نفس له هو سونو ځان ژغورل په خپله يوه مېړانه ده

# په شیرزادو کې د دښمن عبرتناک شکست

حبیب مجاهد

د روان میلادي کال داګست په دوهمه نېټه دننګرهار په شیرزادو او خوګیانو ولسوالۍ مجاهدینو ستره بریا درلوده ، چې په نتیجه کې یې ددښمن هغه ستر کاروان چې سیمې ته دعملیاتو په موخه روان وو دمجاهدینو دعملیاتو ښکار شو ، لسګونه عسکر یې ووژل شول ، او ګڼ شمیر پوځي وسائل او وسایط یې له منځه یووړل شول داچې ددې تاریخي پیښې او ددښمن دعبرتناک شکست سیاق او سباق ته وو په لاندې کرښو کې ورته اشاره کوو .

تردې پیښې څلور ورځې وړاندې دشیرزادو او خوګیانو په سرحدي سیمه کې محلي اربکیانو دطالبانو په یوځایي سرګروپ ( بلال ) چې له یوه بل مجاهد سره په موټر کې روان وو ، برید وکړ ، بلال یې په شهادت ورساوو و او دنوموړي ملګری یې په ټپي حالت کې ژوندی ونیو چې وروسته یې په سخت ظلم او قساوت په شهادت ورساوو .

داربکیانو دې ظلم او قساوت په سیمه کې دمجاهدینو احساسات وپارول ، او دشیرزادو په بلل خیلو سیمه کې یې په پرتو اربکیانو چې دیوه سیمیز ملک ترمشرۍ لاندې یې فعالیت درلود ، دبرید تابیا وکړه ، طالبانو په شیرزادو کې په اربکیانو عملیات پیل کړل ، څرنګه چې ددې سیمې اربکیان کمزوري وو ، نو په جلال اباد کې یې له اردو او پولیسو څخه مرسته وغوښته ، دننګرهار والي داربکیانو مشر ته وویل ، چې تاسو په داده خپل جنګ ته دوام ورکړئ ، زموږ قواوې به ډیر ژر مرستې ته دروررسیږي .

طالبانو دشیرزادو دبلل خیلو او مرکي خیلو په سیمو کې په اربکیانو په برید سره تر ۲۰ زیات اربکیان له منځه یووړل ، خو لا هم اربکیانو مقاومت ته دوام ورکاوو ، په دې لړ کې دننګرهار له مرکز او خوګیانو ولسوالۍ څخه په ګڼ شمیر حکومتي قواوې چې لسګونه پوځي موټر ورسره وو دشیرزادو په خوایې حرکت پیل کړ ، دامهال دخوګیانو او شیرزادو مجاهدینو په ګډه ډلې په اوږدو کې د زاوه ، قیلغو ، خدرخیلو او دهاشم خیلو په سیمو کې ددښمن دغې سترې قوې ته کمینونه ونیول .

کله چې ددښمن قوا دمجاهدینو دکمینونو سیمو ته داخل شوه ، نو په مختلفو سیمو کې ورباندې بریدونه پیل شول ، داجګړه چې ترساعتونو ساعتونو یې دوام درلود ، ددښمن پولیسو ، اربکیانو او پوځیانو ته په کې خورا درانه تلفات واوښتل .

داسلامي امارت ذبیح الله مجاهد د سیمه ایزو مجاهدینو په استناد وویل چې په دې جګړه کې ددښمن ۶۱ تنه عسکر په خوګیانو او ۲۳ تنه په شیرزادو کې وژل شوي دي ، دغه راز مجموعا ددښمن ۸۹ تنه عسکر ټپیان شوی دي .

دننګرهار دمجاهدینو په وینا مجاهدینو په جګړه کې ۱۶ رینجر موټر روغ نیولي ، او ۲۳ عرادې پوځی موټر یې سوزولي یا زیانمن کړي دي ، طالبانو تر ۴۰ میله زیاته سپکه او درنه وسله، مخابرې او نور پوځي وسائل ولجه کړي دي ، په جګړه کې پنځه تنه مجاهدین هم شهیدان شوی او ۴ نور ټپیان دي .

دننګرهار ولایتي چارواکو رسنیو ته ویلي چې په جګړه کې یې ۲۲ تنه عسکر وژل شوي دي ، خو دسیمې یوه عیني شاهد افغان اسلامي اژانس ته ویلي چې دحکومتي وژل شویو عسکرو شمیر تر ۵۰ زیات دی ، چې مړي یې په تیاره کې د چورلکو په واسطه له سیمې ایستل شوي دي .

دپیښو د څارونکو په باور دا جګړه دننګرهار په ولایت کې په نږدې کلونو کې ترټولو ستره جهادي پیښه وه ، چې حکومتي قواوو ته په کې بیساری د سر او مال زیان اوړي .

## د یوه خبریال دسترګو لیدلی حال

سره له دې چې دشیرزادو په جګړه کې دښمن ته دسراو مال اوښتی زیان خورا دروند وو او دښمن له سخت عبرتناک شکست سره مخامخ شوی وو ، خو بیا هم دښمن هڅه کوله په دروغجنو ادعاوو او څنګلوري ازره او حصارک کې دسیمرغ په نامه دناکامو عملیاتو په بریالي اعلانولو سره خپل شکست پټ کړي .

خو څرنګه چې حقیقت هیڅکله نه شي پټیدلای له پیښې څو ورځې وروسته مجاهدینو یو شمیر خبریالان سیمې ته وردعوت کړل ترڅو هرڅه په خپل سترګو



ووینې، ددې خبرالانو په جمله کې دپژواک اژانس په نامه د نیمه حکومتي اژانس خبریال محبوب شاه محبوب هم وو چې خپل دسترګو لیدلي حالات یې په راپور کې داسې راونغاړل (د ننګرهار د شېرزادو په ولسوالۍ کې د تېرې اونۍ له جګړې وروسته هر لوري ته دولتي سوځول شوي ټانکونه او رینجرې لیدل کېږي او ځلې ځلې وسله وال طالبان په رڼا ورځ په ټوله ولسوالۍ کې ګرځي.

شېرزادو ته په رسیدو په لومړنۍ څلورلارې کې مو د پولیسو پر یوه سوځېدلي ټانک سترګې ولګېدې، له ټانګه شپږ اوه ځوانان راټول وو او پر رنجونو یې ترې اوسپنې د کباړ د خرڅ لپاره بېلولې.

د دې سیمې یوه اوسېدونکي اختیار الله پژواک خبري اژانس ته وویل، چې د ویجاړ شوي ټانګ چلوونکی پولیس څو قدمه وړاندې د وسله والو پر ځزو کې ووژل شو. له دغه ټانګ سره په لس مترۍ کې د ملي پولیسو یو رینجر موټر هم چپه مخ پروت و، اختیارالله وویل، چې د دغه موټر چلوونکی د وسله والو له لوري ژوندی نیول شوی دی.

د څلورلارې لوېدیځ لور ته په څو مترۍ کې یو بل د اربکیانو پوځي موټر چې نیمايي د کلي ځوانانو کباړ کړی و، پروت و، دغه سیمه صدرخېل دوه بندۍ نومېده، له دغه رینجر موټر لږ وړاندې یو بل رینجر موټر هم سوځېدلی پروت و.

د څلورلارې شمال خواته د ستر کلي چکاو په نوم یوه سیمه ده، دې سیمې ته په لاره بل سوځېدلی رینجر پروت و، پر دغه ټانګ هم څو ځوانان راچاپېر وو او وسپنې یې ترې د خرڅون لپاره بېلولې. دسیمې خلکو ویل، چې په نښته کې لسګونو اربکیانو او پولیسو ته مرګ ژوبله اوښتې ده.

د دې سیمې په لاندې خوړ کې هم درې سوځېدلي رینجر موټر پراته وو، له دې سل متره وړاندې په خوړ کې له یوه کرولا ډوله موټر سره پنځه تنه طالبان ولاړ وو. له خوړ نه پورې غاړې د سیمه ییزو پولیسو درې نور رینجر موټر تخریب شوي ولاړ و، چې له هغوی هم ګڼ ځوانان تاو وو او هر یوه یې د ځان لپاره وسپنه راویستله. یوه هلک پژواک ته وویل: ((غواړم دا وسپنه خرڅه کړم او ځان ته د اختر خرڅه پیدا کړم.))

له دې سیمې شاوخوا تر یو نیم ساعت پلې مزل وروسته کله چې بلې سیمې ته ورسېدو، نو هلته لسګونه طالبان مېشت وو. له یادو ټولو وسله والو طالبانو سره راکټ، پیکا، کلاشینکوف، برچې او داسې نور جنګي وسایل وو، او ځانونه یې داسې چمتو کړي وو، لکه چې همدا اوس جنګ ته روان دي، په دې ډله کې مو د وسله والو درې قوماندانان هم ولیدل.

یو یې ځان زرقاوي معرفي کړ، چې څه موده مخکې یې دولتي ځواکونو د وژل کېدو خبر ورکړی و، ورسره په خواکې یو بل سپین ږیری کشمیرخان قوماندان ولاړ و، د کشمیر خان د وژلو خبر هم څه موده وړاندې یو شمېر رسنیو د دولتي سرچینو په حواله خپور کړی و، خو موږ ولیدل چې دغه خبرونه بې اساسه او دوی دواړه اوس هم ژوندي او په سیمه کې فعال دي.

په دې سیمه کې دطالبانو یوه بل قوماندان پژواک ته وویل، چې په یاده نښته کې د دوی پنځه ملګري وژل شوي دي. هغه ویل: ((که څوک وایي چې دا دروغ دي همدا اوس هدیرې ته څو او وبه ګورو چې پنځه قبرونه دي او بس.))نوموړي وویل، چې د سیمه ییزو پولیسو قوماندان او یو شمېر نور ملګري یې پر یوه کور ور ننوتي وو او ماشومان یې د سپر په توګه کارول.

## له پېښې وروسته

د شېرزادو په پېښه کې که څه هم دښمن ته درونډزیان واوښت خو دښمن ظاهرا هڅه کوله خپل تلفات پټ کړي، مګر ډېر ژر دا راز رابرسېره شو او هغه داچې له پېښې یوه اونۍ وروسته د اګست په لانیته دکابل چارواکو دننګرهار محلي امنیتي مسؤلین تورن کړل، چې دې چارواکو په جګړه کې په بې احتیاطۍ سره عسکر له تباهۍ سره مخ کړي دي.

په همدې نیټه دکورنیو چارو وزارت اعلان وکړ چې دننګرهار محلي امنیتي چارواکي یې دپولیسو دقتل عام او ځرګندې ناکامۍ په تور څارنوالۍ ته معرفي کړي دي ترڅو ورسره حساب وشي.

باید وویل شي چې دا لومړی ځل دی چې حکومت له خپلو چارواکو سره محاسبه کوي، چې له دې معلومیږي چې دښمن ته خورا درونډ زیان رسیدلی او ګڼ عسکر یې له منځه تللي دي.

په ننګرهار کې دداخلي عسکرو عبرتناک شکست او ددوی دعملیاتو معکوسې نتیجې وښوده چې دنړیوالو یرغلګرو هغه خیالونه بیځایه دي چې فکر کوي دخپلو پوځیانو له ایستلو وروسته به مسؤلیت داخلي قواوو ته وسپاري او په دې توګه به دنیابتي جنګ په توسط خپل اهداف وپالي، ځکه دې جنګ وښوده چې ددوی جوړ شوي امنیتي ځواکونه تر وروستي حده آسیب پذیره او ناتوانه دي چې له مجاهدینو سره دمخامختیا تاب نلري.

# دمصريانو قاتل ( السيسی ) څوک دی ؟

لطيف عزم

جنرال عبدالفتاح السيی ، چې دامريکااواسرايلوپه قومنده اوخاص هدايت يې دمصر ۱۵ زره تنه مظلوم مسلمانان چې دعظيم الشان قران له نسخوپرته يې بل څه په لاسوکې اوجيبوکې نه لرل ، په يوه ورځ ( داګست ) په ۱۴نيټه دهوايي اوځمکينوعملياتوپه ترڅ شهيدان اوزخميان کړل ، سيسی دجولای په ۳ نيټه دمصر منتخب ولسمشر ديوې کودتا په ترڅ کې له واک نه ليري اوزندان ته يې وليږه .

دمصر داخوان المسلمين ډلې چې شميريې له ۲۰ ميلونو تنواوړي دمرسي له ليري کيدو ورسته په سرتاسري لاريونواومظاهرولاس پوري کړی اوهوډيې ښوولی چې ترڅو مرسي بيرته قدرت ته نه وي راغلی دوی خپلو اعتراضونوته دوام ورکوي .

اوس راځوديته خبري ته چې جنرال عبدالفتاح السيسي دی څوک چې هم يې منتخب نظام ړنګ کړ اوهم يې په يوه ورځ کې ۱۵ زره تنه مظاهرچيان په خپلووينولت پت ، شهيدان اوژوبل کړل ؟

جنرال عبدالفتاح السيی : چې ۵۸ کاله عمرلري لوړي زدکړې يې په امريکا اوبرتانياکې سرته رسولي ، نوموړی دمصرپه قاهره کې پيداشوي اوپه کال ۱۹۷۷کې عملا دپوځ ليکوته داخل شوی ، هغه په کال ۲۰۱۲ کې دمحمدمرسی له لوري چې کله هغه دواک په ګدی کيناست دغه ناځوانه څيره يې د( سپهبد محمد حسين طنطاوی ) په ځای د مصر ددفاع وزيرپه توګه غوره اوومټاکه ،لدې نه وړاندې السيسي دپوځ دنظامي استخباراتومشروو.

هغه چې ددندې پرمهال دمصر داخوان المسلمين دډلې اومشرانوپه اړه کافي معلومات درلودل داسې ويل کيدل چې دحسنی مبارک دنسکوريدوپه پاڅون کې چې په ۲۰۱۱ کې ترسره شو سيسي له اخوانيانوسره يواندازه نيږديوالی هم په ډاګه کړی وو ، همدغه تمايل ووچې مرسی له خوش باوري نه کارواخيست او نوموړی ددفاع وزيرپه توګه انتخاب کړ .

ويل کيږي چې جنرال السيسي له امريکااوغرب سره ډيرې تودې اړيکي لري اوګڼ سفرنه يې ترسره کړي په دې سربيره يې دنظامي استخباراتو ځانګړې زدکړه هم په امريکاکې ترلاسه کړې ، دغه راز د۲۰۱۱کال داکتوبرپه مياشت کې داسرائيلي بندي ( ګلعاد شاليت ) چې له حماس سره اسيروو په خلاصون کې يې مهم رول لوبولی وو .

کله چې سيسي دمرسي رژيم ړنګ کړ او دهغه پلويانو په لويو لاريونو لاس پوري کړ ، يوې اسرائيلی ورځپاڼي «هاآرتص» يې په اړه وليکل : سيسي به تنها دمرسي په ليري کيدو بسنه ونکړي ، بلکي ټول صلاحيت اوځواک به په کارواچوي چې داخوان المسلمين ډله منحل اودسياست له صحني به يې حذف کړي ؛ چې دادی کټ مټ داسرائيلو دغه خوب دمصراواسلام لوی دښمن ( سيسي ) رښتيااوپه عمل کې يې تريوه حده پلی وګرزاوه .

له بل لوري سپيني ماڼی ترپايه دسيسي له لوري دمرسي درژيم جنايت محکوم نکړ اوحتی کودتايې ونه بلله اونه يې هم د۱۵ تنو مصريانو په مرګ ژوبلې دفرعون لوی جلاد سيسي ته داسې ترخه خبره اوجدي غبرګون په ډاګه کړ ، بلکي توند دريځ اوموقف يې داوه چې دواړه لوري دي له زغم څخه کارواخلي !!!

پايله : له پورته ټولو حقايقوپه اثبات ورسيده اوهرڅوک په دې خبره پوه شول چې قاتل سيسی دچاپه قومنده اواشاره دمصري مسلمان ولس په مقابل کې چاړه راوويسته اوداخبره هم هرچاته څرګنده شوه چې امريکا غرب اوتاليځتې يې په اسلامي هيوادونوکې له کوم ډول جمهوريت ! ديمکراسی ! اوبشري حقوقوڅخه ملاتړ کول غواړي .؟ !

# د ۱۶ افغانانو قاتل او نمايشي سزا !!

ل. عزم

تيركال د مارچ په مياشت کې د کندهار ولايت په دوکليو کې په يوه شپه ۱۶ تنه مظلوم افغانان چې ښځې، ماشومان او سپين ږيري هم پکې شامل وو د امريکايي وحشي عسکر (رابرت بيلز) له لوري په ډيرې بې دردي له تيغه تيرکړل شول.

د راپورنوله مخې پرون د (اګست په ۲۲) نيټه د افغانانو دغه پيژندل شوي قاتل ته د امريکا د واشنګټن يوې پوځي محکمه کې د ۲۰ کلونو د بند يوه نمايشي سزا واوروله.

رابرت، چې په محکمه کې يې په خپل جرم اعتراف کاوه په جريان کې يې کوم داسې ټکي له خولي راونه ويستل چې ندامت پکې ښکاره شوي وي او د ۱۶ افغانانو په قتل عام دې انديښمن وي، بلکې لوړ مورال يې درلود او د هيڅ کوم فشار او تهديد احساس نه کاوه!

په داسې حال کې چې تراوسه د کابل له اجير رژيم سره امريکايان کوم قضايي مصؤنيت هم نلري اونه يې هغه ګوډاګي امنيتي تړون لاسليک کړی، خو بيا هم رابرت بيلز ته ديوه داسې جنايت په مقابل کې چې د امريکا په قانون کې ورته لږ تر لږه ۱۶ ځله اعدام او شديد مجازات مقرردي، د پردې ترشا هغه هم په يوه نمايشي اوله تمسخرنه په ډکې محکمې کې د ۱۶ تنو افغانانو د وژني پوراوبيه ايله پنځه نيم لکه ډالره او ۱۶ کاله بند اعلان شو.

له بل لوري د رابرت د پوځي محکمې څارندوالانو ويلي چې دوی ځکه نوموړي ته د ۲۰ کلونو د سزا غوښتنه وکړه چې لدوی سره داسې يوتلفوني غږ موجود او ترلاسه کړی يې دی چې نوموړي له خپلې ميرمنې سره په تلفون کې د کندهار په قتل عام خوښي ځرګندوي او د تمسخر په ډول وايي چې هغه په خپل لاس ۱۶ تنه افغانان په لوړ احساس ووژل او له مرګ څخه يې خوند واخيست !!

خو؛ له همدومره ځناورتوب او مسخه شوي ضمير باوجود امريکايي نا ترسي محکمې په انسانيت پښه کيښوده د افغانانو ويني يې هدر او د بوسو په بيه وشميرلې او د ۱۶ تنو د مرګ په مقابل کې يې هم يوتن امريکايي عسکر د مرګ او اعدام مستحق ونه باله، بلکې ديوه وژل شوي افغان په سرې امريکايي قاتل ته ۱ کال او دری مياشتې سزا مناسبه وبلله !؟

د راپورونو له مخې تنها په تيرو شپږو مياشتو کې د خارجي عسکرو له لوري يونيم زر تنه ملکي افغانان وژل شوي او د واشنګټن پوست په وينا د تيرو ۱۲ کلونو په اوږدو کې ۴۰ زره بې دفاع افغانان د امريکا او ناټو د پوځيانو له لوري وژل شوي او ۷۰ زره تنه ټپيان شوي، خو د دغو دومره قصدي مرګ ژوبلې په مقابل کې امريکايانو ايله يو امريکايي عسکر په يوې انسانيت وژونکي محکمې ته وړاندې کړ اويوه جعلي سزا يې ورته واوروله.

اوس به معلومه شي چې د کابل ګوډاګي چارواکي چې افغانان له امريکايانو سره د امنيتي تړون اوقضايي مصؤنيت په اهميت اوتبليغاتو نورکانه کړل د ۱۶ تنو افغانانو د قاتل په محکمه اوسزا څه ډول غبرګون ښيي او په کوم استدلال او ډاډ بيا هم افغانانو ته وايي چې که له امريکايانو امنيتي تړون ولري نو د افغانانو ژوند مصؤن اوله هرډول خطراتو ته محفوظ وګرځول شي.

خو که په چاکې لږ غوندې عقل اوشعور هم وي د افغانانو د معلوم الحاله قاتل (رابرت بيلز) په ورستی محکمه او سزا به پوه شي چې امريکايي واکمن افغانانو ته په کوم نظراوارزښت قائل اوخپلې ويني د نورو له وينو سره په څه ډول تلل او ارزول غواړي؟.



# ملت ما هرگز ملت غلام فطرت نیست

حبیب الله یوسفزی

مسئله حل بحران افغانستان نسبت به افغانها برای امریکایها بسیار قابل برسيي ونگرانی است ،آمریکا که در تاریخ دوصد ساله خود چنین جنگ طولانی رانه دیده بود بلکی اصلا در این عصر تکنولوژي جدید و مدرن فکر نه میکرد که با این قسم جنگ مواجه خواهد شد که پهنا ودرازی بسیار آز آن دارد که قبلا پیش بینی شده بود ،اکنون ممکن درک کرده باشد که واقعیت ها هرگز طوری نه بوده که آمریکا ازآن مطالعه داشت ، در تاریخ بشریت امپراطورها و کشور های زور گو همیشه از رویش همچو امریکا استفاده نموده اند، مسائل را بسیار اندک نگرسته و خود را توانمند کنترول وضعیت پنداشته اند.

ازفرعون گرفته تا ابوجهل ، از چنگیز تا انگلیس و اینکه از اتحادجماهر شوروی تا آمریکا همه در آغاز نبرد با گروه کوچک ولی دارای ادیال بلند ، ناتوان ولی با اراده ، مستضعف ولی هوشیار ، کم بضاعت ولی با ایمان و دلیر مسائل را از حجم اصلی آن به مراتب کمتر زیر برسي وتحقیق قرار داده اند و حالت را نه آنچنان که واقعا بود تصور کرده اند ،اگر فرعون در روز اول آغاز مناقشه با حضرت موسی علیه السلام این را نیز تصور میگرد که روزی در قعر دریایی مصر ناله ء (آمَنتُ أَنَّهُ لَا إِلَـٰهَ إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ) را سر خواهد داد هرگز قدرت و امپراطوری خود را از دست نه میداد بلکی حاکمیت خود را میتوانست از انتخاب منفی به گزینش مثبت تغیر دهد و از صدای (أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ) به انا عبدالله تغیر جهت میکرد و دیگر هم به حاکمیت خود بالای ملت مصر ادامه میداد .

همچنان اگر ابوجهل در برابر حق از پست فطرتی و تکبر استفاده نه میکرد بلکی به داعیه حق حضرت پیامبر اسلام صلی الله علیه وسلم می پیوست حاکمیت قریش را از دست نه میداد بلکی خود یکی از با قدرت ترین و با وجاهت ترین اشخاص... باقی می ماند و در آن صورت صفحه درخشان در تاریخ بشریت میداشت.

همین گونه ، چنگیز ، انگلیس ، اتحاد شوروی و اینک آمریکا اگر در آغاز نبرد با افغانهای مسلمان و راد مرد تصور انجام حتمی و راستین قضیه را میتوانستند به حالتی که دوچار هستند هرگز مبتلا نه میشدند ، ولی این ابله های تاریخ نه میدانستند که دربرابر کدام ملت ، کدام اراده ، کدام تیوری ونهایتاکدام ادیولوژی قرار میگیرند ؟

اینها فکر میکردند که میتوانند توسط قدرت مادی خود بنیاد عقیدوی ملت افغان را متزلزل سازند و جنگ با افغانها هم مثل سائر جنگ های بشری خواهد بود که طرفین قضیه اتکاء کامل به توانایی مادی دارند و انگیزه هردو جانب استوار بر منافع شخصی میباشد .

ولی اکنون لازم است که آمریکا همه حقائق را درک کرده باشد ، جنرالهای آمریکایی باید بخاطر آینده بشریت از قصهء های جنگ در افغانستان ، همچنان از مردانگی افغانها سخن گویند ودیگر سبب نجات زور گوهای آینده شوند .

به تصورما امریکا اکنون فقط یک گزینه در اختیار دارد آن هم خروج بلاقید وشرط از کشور ما افغانستان است ، ونیز پپشیمانی از خطاء که دوازده سال قبل آن را مرتکب شده بود.

امریکا هرگز توان آن را نه دارد که جنگ افغانستان را به نفَس آرام ادامه دهد ویاافغانها را متقاعد به قبولاندن غلامی نماید، اگر امریکا تصور داشتند پایگاه های دائمی در افغانستان را مثل که ادعا دارد داشته باشد پس باید متیقن شد که ملت ما هرگز ملت غلام فطرت نیست ونه هم در برابر تجاوز و تسخیر آرام خواهد نشست ، ما به نیرو جوان خود باور داریم که تاآن زمان جهاد را ادامه خواهد داد تاکه آخرین عسکر اشغالگر را نیز از تمام حدود کشورخود براند و صاحب اختیار کلی در مملکت شود .

*اگر امریکا هنوز هم ملت غیور، مسلمان و راد مرد افغان را نه شناخته باشد ودر برابر آنها از ادامه جنگ سخن گوید پس منتظر افتضاح بیشتر باشد و روز فرا خواهد رسید که حیثیت باقی مانده خود را نیز به باد خواهد داد و درنهایت راه شرم آور گریز را توأم به تلفات سنگین خواهد پیمود .ان شاءالله وما ذالک علی الله بعزیز*



# ایا امریکایان په افغانستان کې دجګړې اصلي عامل او لوری ندی

اولیا زابلوال

شک نشته چې امریکایانو په افغانستان کې نوره کلکه ماته خوړلي اودی نتیجې ته رسیدلي چې دجګړې په ډګر کومه لاسته راوړنه اوپر مختګ نلري ، نوغواړي خپل شیطانت اوچالاکي دسیاست په بازار کې دځان په ګټه استعمال اوپه ښه بیه وپلوري اودجګړې رسوایی اوشکستونه پرې پټ اوعامه اذهان په بل لوري واړوي .

امریکایانو دتیر و۱۳ کلونو په اوږدو کې په پوځي زورازمایی اوډول ډول ستراتیژیو دپلي کولو تر څنګ زیاتې هڅې اوهلې ځلې وکړې چې دشمال ټلوالي په مرسته اودغرب له هوټلونو دراوړل شوو افغان نماځیرو په توسط په افغانستان کې دیوداسې رژیم ښې ټینګې کړي چې دطالبانو دګوابنونو او بریدونو ځواب ووایي اودامریکایانو په ځای دوی روانه جګړه پرمخ بوځي ، اوددې پرځای چې امریکایي عسکر ووژل شي اوټپونه واخلي بایدافغان ملي اردو دغه بار اوغلامي په اوږ واخلي ؛ که څه هم امریکایانو په خپلې دغې چالاکی اودام غوړولو سره دملي اردو بیړه غرقه کړه ، دجګړې دمخې سپریې وګرځول ، خودامریکایي وحشي لښکرو په اورمیږ واو ککرولو څوبرابره زیات دطالبانو مرمی ولګیدي ټانګونو یې دړې وړې شول اوچورلکویې راوغورځول شوي یاني کوم خنداوځنډندی پکې راغلي اونه هم دامریکایی عسکر تلفات اودزیانونو کچه ټیټه اوکمه شوي

هرڅوک دامني چې دپنځواودریو کلونو مخکې څخه اوس په دې نیږدې ۲ او۳ کلونو کې امریکایانو ته درانه تلفات اومرګ ژوبله اوړیدلي اودغه لړی په توندی په مخ ځي ، مطلب داچې امریکایانو انتهایي کوشش وویست چې خپل غلامان مسلط اوځواکمن وساتي ، ولې الله تعالی په دې کاراوحربه کې هم سخت شرمنده وګرځول اوله خپل

ټول قدرت ، وحشت اوامکاناتوباوجودپه دې بریالي نشول چې تنهـا دکابـل ښار امنیت اوثبـات خونـدي اوډاډمـن وګرځوي !!

له بل لوري امریکایان چې پـه یـوه لویـه تیروتنـه کې کیوتل هغه داچې دافغانستان په خاوره دانګریزانواوروسانو دیرغـل اوتـاریخي مـاتي سـمه انـدازه دوی ځانتـه نـه وه معلومه کړي اویایي داسې فکرکړی ووچې افغانستان بـه هـم لکـه دخلیجـي هیوادوپـه څیریوهیواداوداافغانسـتان اسلامي امـارت قیـادت بـه هـم دعربـي شـاهانوپه څیرپـه خوبونـو اواسـتراحتونوکې ډوب خلـک اوچـاروا کي وي چـې دقدرت دبقالپاره چې څـه امریکایـان ورتـه وایـی هغـه بـه مني .

افغانانوامریکایانو ته دروان مقاومت اوجهادپه ذریعـه په اثبات ورسوله چې دوی تـه دخپلې خـاوري اومقدساتو ساتنه اودغیرت ژوندتربل هرڅـه غـوره اوعزیـزدي او کـوم قیاسونه اواټکلونـه چې امریکایـانو کړي ووهغـه ټـول باطـل اونامراده دي اوپه دې یې هم سرخلاص شو چې پرمختللی جنګـي ماشـین اوپـه اصـطلاح لـه فضـاڅخه پرځمکـه دڅلوراینچه شی لیدونکي تکنالوژی یې هم په افغانستان ړنده اوله کاره وغورځیده .

امریکایان چې کله پوه شول چې جګړماري اوخودخواه تګـلاري یـې ماتـه ولیدلـه اونورداسـتعمال وړنـده ، نولـه طالبانوسـره یـې دخبرواومـذاکراتو لارونیولـه ، ولـې لـه مذاکراتوورانديې یې داچـالاکي اوشیطانت تـرمخ اوعنـوان کړچې اصلي جنګ اوجګړه خودطالبانو اوکابل رژیم ترمنځ ده ، دوی به صرف دمنځګړي رول لوبوي !!

عجیبه خبره ده ، دکابل له ګوډاګیانوسره چې ستاسې مرسـته اوراشـن نـه وي اوستاسي ټانـک ، الوتکـه ، وسـله اوډالریوځای روان ونه وسي دهغوی یوه ورځ په افغانستان کې اوسیدا ممکنه ده ؟ اوایاهغوی له همدې ویري په خپلو بیکونـو کې دامریکااوبـل غربـي هیوادسیاسـي پنـاه وو اسناداوویزي تیـاري نـدي ایښـي اوایافامیـل اوبچیـان یـې وارله مخه په غرب اوامریکاکې میشته ندي ؟

لـدې حقیقـت څخـه بـه امریکاڅنګـه دخلکوذهن بـل لـوري تـه واړوي چې دتیـرو۱۳ کلونوپـه اوږدوکې ستاسي جاسوسـان اوژبـاړونکي څـوک وو ، تاسـې تـه لاراوګـودري چادرښـودلي اویومیلـون افغانـان مـوچې پـه بګـرام ، کابـل ،ګوانتانـامو ، کندهاراودشمال په پټـو اوښکاره جیلونـوکې شـکنجه کـړل اودواشـنګتن پوسـټ پـه راپـور۵۰زره ملکي افغانـان مـوچې ووژل څـوک درسـره شـریک اوملاتـړي وواوچادرته ویل چې دادوست دی اودادښمن ؟

اوس چې خبـره درنـه وشـړیده اودتیښـتي مرحلي تـه ورسـیدي لـدې ورسـته ځـان دریمګـړی معرفـي کـوي اودجګړې اصلي لوري طالبان اودکابل اداره بولي ،بنیـادي خبره داده چې اصلي جګړمـاران تاسي یاست اودکابـل رژیم ستاسې دجګړې دسون توکي وو

دطالبانودغـه دریځ چې هغـوی تـردې دمـه لـه کابـل اداري سـره خبروتـه نـدي چمتوشوي اونومـوړي اداره بـې واکه اوبې صلاحیته ګڼي اوامریکایان دجګړې اصلي عامل بولي له شک پرته دایومعقول موقف اوپرځای دریځ دی ، ځکـه امریکایـان ډیرځلـه پـه خپلـو تعهـداتو اوپریکـړو ورخیـبړي اونقـض کـوي یـې ، داخبـره خوهیڅکلـه دمنلواوډاډنـدی چـې دامریکاګوډاګیـان اوغلامـان دي لـه چاسـره توافـق اوموافقـه وکـړي اودوی دې بیامنلوتـه ځـان پابنداومتعهدوشمیري !

# قاهره کې مظلوم مسلمانان په کوم جرم ددومره ستر قهر ښکار شول ؟

شهیدزوی

نن مصر په نړیوالو رسنیو کې ځکه دسر مقام لري چې هورې په تېرې لنډې مودې کې لوی تحولات رامنځته شول اوبیاداګست په ۱۴ مې نېټې یکې ستر قتل عام وشودادمصر اوسنی خورادردونکی تصویر دی او اوس دمصر دنوم سره همداتصویرمل وي ؛ خونړۍ چې مصر پېژني نوداوسنو پېښو درامنځته کېدلو له امله نه بلکې له دې امله چې دنړۍ په سطحه داهېواد خورا زیات قدیم تاریخ لري ، دلته ډېر دینونه اوتمدنونه تېر شوي ، داد ګڼو انبیاءو دبعثت خاوره ده ، دلته فرعونان تېر شوي ، داددفرعون په شکل کې دستر باطل اودموسی علیه السلام په صورت کې دلوی حق دتاریخي مقابلې ډګر و ، دلته دالله تعالی یوستر پیغمبر حضرت یوسف علیه السلام په کوچنیتوب کې دغلام په نوم خرڅ شوی و ؛ همدلته خدای دنفس پر ستو په لومو کې درابنکېلېدو نه ساتلی اوډپاک لمنۍ هغه تاریخ یې جوړ کړی و چې دقیامت تروروځې به یې الله تعالی په ستر کتاب قرآنکریم کې یاد تازه ساتي ؛ دحق پالنې په لار کې دابتلاګانونه پس همدلته هغه ته الله تعالی لوړ مقام ورپه برخه کړ ی و ، همدلته نیل دی اوهدلته هغه قلزم دی چې پکې فرعون اودهغه لښکر هلاک شوی اودموسی اوهارون علیهماالسلام سره یوځای الله تعالی همدلته بني اسرائیلو ته نجات ور کړی و او داهرامونو په نوم دتعمیراتو په نړۍ کې ترټولوقدیم او ستر شاهکار هم همدلته دی .

لنډه داچې دااوګڼ نورلاملونه دي چې دې هېواد ته یې نړیوال شهرت وربښلی دی خوتر کومه چې داهمیت خبره ده نو دامریکا ، اسرائیلو ، نورلویدیځ لپاره او هم داسلامي نړۍ لپاره ددې هېواد اهمیت دلته دسویس دکانال دشتون تر څنګ دفلسطین په خاوره دیهودو دقبضې اودلته داسرائیلي دولت داعلانولوله امله دی ځکه چې په تېرو وختونو کې چې دیهودو دقبضې پر ضد اودفلسطین دازادۍ لپاره څومره حرکتونه رامنځته شویدي مرکزاومحوریې مصر دی اوداسرائیلو پر ضدچې د۱۹۴۸م ، ۱۹۶۷م او ۱۹۷۳م کوم ۳جنګونه رامنځته شوي نومرکزي ونډه پکې دمصري فوځ وه دابېله خبره ده چې مصري فوځ دخپلومتحدینو سره یوځای دیوموټي اسرائیلو په مقابل کې پدې هر جنګ کې ماتې خوړلې وه .

داروښانه خبره ده چې دمصر اونورودخپلوفوځونوپه مقابل کې بریالیتوب دامریکا اونور لویدیځ لپاره مهم و خوددې نه زیات مهم ددوئ لپاره دمصري فوځ دذهنونونه داسرائیلوسره ددښمنۍ اوجهادي

روحیي ویستل ونوځکه دښمن دمصر په باره کې خپله تګلاره بدله کړه اوپر ځای ددې چې دمصر سره دښمنی ته دوام ور کړي په خپلولوموکې دراښکېلولوپه موخه يې مصر ته ددوستۍ لاسونه ور اوږده كړل اودفوځ سره يې نيغ په نيغه روابط جوړ كړل ، زرونه فوځي افسران اوخصوصاًپاليسي جوړونكي اركان يې دتربيت ور كولو په نوم دامريكا اوبر تانې فوځي اكاډميو ته بوتلل اوددې تر څنګ امريكادمصر فوځ ته داسرائيلو نه پس تر ټولو زياتې مرستې ور كړې ، دامريكا د كانګرس دتحقيقاتي مر كز تراوسه د كومک په نوم مصر ته امريكا۶۸ مليارده ډالر ور كړيدي دمصر فوځ سره دمخامخ روابطو ، تربيت اوور ته دمرستو ور كولو نتيجه داشوه چې مصر ګاونډی غاصب دولت هم په رسميت پېژندلی اوهم يې ور سره دامن لوظنامه لاسليک كړيده چې همداخبره دعربي نړۍ سره دامريكا دروابطومر كزي نكته وه او اوس هم ده ؛ اودمصر فوځ سره دمخامخ روابطو ، تربيت اوور ته دمرستو ور كولو نتيجه دا هم شوه چې د۱۹۷م نه تر ۲۰۱۲ ياني دحسني مبارک دمعزول كېدلو پورې په تېرو ۳۵ كلونو كې په مصر كې داسې فوځ تيار شوچې داسرائيلو په پر تله يې دمصر داسلام خوښوسره دښمني ډېره زياته ده ځکه خويې د ډاكټر مرسي په مشرۍ كې د اسلام خوښوواكمني ديو كال نه د زياتې مودې لپاره ونه زغمله اودمحمدمرسي د ادارې پرضد دمظاهرو د شروع كېدلو نه لا ډېر دمخه يې ددې ادارې د ړنګولو پرېكړه وكړه دامور نه وايو بلكې د محمد مرسي په مخالفينو كې يو ډېر مهم مخالف ډاكټر مونا مكارم عبيد هم اوس دااعتراف كړی . ډاكټر مونا مكارم قطبي عيسائي دی د تېرو ۱۷ كلونو راهيسې په قاهره كې د امريكايي پوهنتون د سياسي چارو په فاكلتې كې استاذ دی ، د حسني مبارک د واكمنۍ پر مهال د پارلمان غړی و او دهغه د ادارې د له منځه تللو نه پس يې په عبوري دولت كې د فوځي شورى غړيتوب درلوده او وروسته دمحمد مرسي دولت كې هم د پارلمان غړی شو چې د قانون جوړونې په كمېټې كې ركن هم و او د نورو سيكولر او لبرل اركانو سره يوځای ده هم دمرسي د حكومت په ورستيوور ځو كې له خپلې دندې استعفی ور كړه ، د جولای په ۳ يمه نېټه چې د فوځ په لاس د محمد مرسي اداره ړنګه شوه كابو يوه اونۍ پس د جولای په ۱۱ مې نېټه د مډل ايسټ انسټيټيوټ نومې ادارې له لوري ((دمصر سياسی مستقبل)) تر عنوان لاندې جوړ شوي سيمينار كې دوينا پر مهال د ډاكټر مونامكارم له خولې داخبره رااووتله چې د محمد مرسي د دولت پر ضد د مظاهرو د پيل كېدلو نه لا وړاندې د فوځ مشر عبدلفتاح السيسي دمرسي د مخالفينو په مرسته د دولت د ړنګولو پلان جوړ كړی و ؛ هغه زياته كړه چې دجون په ۳۰ مې نېټې ياني د فوج د اقدام نه ۴ ورځې وړاندې ځه د حسني مبارک د نږدې ملګري او د هغه په اداره كې د ښهر سازۍ وزير حسب الله الكفراوي كور ته په يومجلس كې د ګډون لپاره دعوت كړم ؛ د ۲۰ نه زيات د لوړی كچې سيكولر جورنالستانو اوداپوزيسيون د مشرانو تر څنګ جنرال فوادعلام هم شتون درلودلو ، ( جنرل فوادعلام د حسني مبارک د اداره كې د داخلي استخباراتو د ادارې مشرو ، انسانانو ته د تكليف رسولو په فن كې نړيوال شهرت لري او په تېرو ۲ لسيزو كې د اخوان المسلمون په ګډون د ټولو مذهبي ګوندونو د غړو د نيولو او د تحقيقاتو پر مهال د سختو سزاګانو په ور كولو كې ډېر لوی نوم ګڼلی دی ) ډاكټر مونامكارم زياته كړه چې د مجلس د پيل كېدو سره سم حسب الله الكفراوي په ډېرې رازدارۍ سره وويل چې ځه د فوځي مشر تابه سره په رابطه كې يم او د فوځ مشر عبدالفتاح رانه غوښتی دي چې اپوزيسيون دې دده نه د مرسي د ادارې د ړنګولو تحريري غوښتنه وكړي ؛ د ډاكټر مونا مكارم په وينا د اپوزيسيون د ۵۰ نه زياتو اشخاصو له لورې امضاشوې غوښتنليک تيار شو ، د ماسپښين د ۳ بجو نه وړاندې فوج ته وسپارل شو او د جنرل اليسی غوښته پوره شوه .

د يادولو وړ ده چې په كومه ورځ چې جنرل السيسي د اپوزيسيون نه دامطالبه كوله په همدې ورځ دپلان له مخې د محمد مرسي د مخالفينو له لورې د مازديګر په ۵بجو مظاهرې پيلېدونكې وې ياني كوم وخت چې جنرل السيسي دمحمد مرسي د ادارې د ړنګولو اقدام كاوه او په دې اړه يې له اپوزيسيون نه غوښته كوله هغه وخت ولسي وګړي لا بيخي د محمد مرسي پر ضد راوتي نه وو ، ددې نه د مصر د فوج اصليت ښه روښانه كېږي او دا يقين نور هم قوت مومي چې د مصر دسيكولر فوځ هر اقدام د بل چا په حكم وي ، او دفوځ مشرانو ته د مرستې په نوم د امريكاله لوري دور كړل شوو مليار دونو ډالرو رشوت په بدل كې فوځ د خپل هېواد او ولس د ګټو لپاره نه بلكې د امريكا او د اسرائيلو د ګټو لپاره د خپل مسلمان ولس پر ضد د وحشت نه ډک اقدامونه كوي ؛ او د ولس مظاهره او مطالبه تشه پلمه ده ؛ كه د ولس د مطالبې او مظاهرو خبره وي نو د مرسي پر ضد د زرنو مخالفينو د ۴ ورځنو مظاهرونه پس كه د مرسي



اداري ړنګول ضروري ووڼو د مرسي په پلوۍ کې چې مليونونه مصريان سر کونو ته راوتلي دي د ۴۴ ورځو مسلسلو مظاهرو نه پس ولي دولس دغوښتني احترام ونه شو ؟ او نه يواځې داچې د غوښتنې احترام يې ونه شو بلکې پر ضد يې د وحشت نه ډک هغه اقدام وشو چې نړۍ يې هکه پکه حيرانه کړه.

هو! دفوځ له لورې پر محمدمرسي د کودتانه پس درامنځته شوې موقتي اداري دسيکولرمشرانو په حکم په قاهره کې داګست د۱۴مې نېټې دفوځ، پوليسو، نيشنل ګارد اودحسني مبارک دوخت د البلطجيه نومې ملېشو په لاس دمسلمانانولوی قتل عام رامنځته شو چې پکې دنـاپيپلو رسنيو پـه وينـا دوه نيم نـه تـر ۳ زره يـاددې نـه هـم زيـات مسلمانان شهيدان اوتـر ۱۵زرو پورې ټپيـان شويدي، پـه ټپيـانو کې داخوان المسلمون مهم مشر ډاکټر حسام ابوالنجاري هم شامل دی چې حالت يې داندېښنې وړ بنودل شويدی.

په قاهره کې داګست په ۱۴مه نېټه دمسلمان ولس په بې رحمانه قتل عام داثابته شوه چې رښتياهم دمصر اوسنی رژيم ددې حقدار دی چې فرعوني رژيم وګڼل شي؛ دابېله خبره ده چې دې دولت ته په فرعوني دولت ويلو که دهر فرعون روح خبرېږي سخت به شرمنده وي.

هو! دچارشنبې په ورځ سهار وختي پـه ټانکونو کې سپرو فوځيانو دمسلمانانو پـه اعتراضي کمپونوخونړی يرغـل وکړ اولـه ځانونوسـره راوستي بلډوزرونه يې پـدې کمپونو وروخېجول، دځمکني فوځ سره جنګي چورلکې هم ملې وې چې يې دحملې سره سم يې پر مسلمانانو لکه دبهرني خطرناک دښمن ډزې پيل اوتر آخره جاري وساتلې؛ دحملې نه لاوړاندې دشپې له مخې په پټه په زرونو فوځيان او دحسن مبارک ددور البلطجيه نومي بدنامه ملېشه دښارټولو لوړو ودانيوو تـه خېجول شوي ووچې همدوۍ زياتره مسلمانان په سرونو، ځيګرونو اودبدن په نورو پور تنو برخو ويشتلي اوشهيدان کړيدي؛ ددې خلکو ګناه داوه چې دفوځ لـه لورې دلـری شوي منتخب ولـس مشـر محمـد مرسي بېرتـه واک تـه دراوستلو غوښتنه يې کولـه، ددې لپـاره يې دتېرو ۴۴ ورځو راهيسې مظاهرې کولې اواعتراضي کمپونه يې جوړ کړي وو؛ ډېر وحشتناک اوله حده زيات دردونکی منظرو، په سکندريه، پورټ سعيد، النصر اوځينو نوروښارونو کې هم فوځ په مسلمانانو خونړۍ حملې کړيوې چې پکې ګڼ شمېر مسلمانان شهيدان شوي خوپه قاهره کې ښخي ستره کربلا وه؛

سـر کونه، لارې او کـوڅې لـه شـهيدانو ډکې وې اولـه هرلـورې دټپيـانو ژګېـروې پور تـه کېـدل؛ ازادو رسنيو کې راغلي چې دقـاهرې دټـولې لويديځې برخې دځمکې نه دمېرمنو ژړاګانې اوچغې پور ته کېدې اوفضا يې دبارودو تورو لوخړو نيولې وه؛ العربيـه تلويزون وايلي و چې فوځ پـه العدويه ميدان کې د ۱۰ زرونه زياتې نصب شوې خېمې پـه منظمه توګه دفاسفورس بمونو او اورلګونکو ګوليو پـه واسطه سوځولې دي چې پکې تر ۵ زرو پورې مسلمانان سوځېدلي دي سوځېدلو تنانو کې زياتره

ټپيان دي خو ګڼ شمېر پکې مړه شوي هم دي چې له بده مرغـه پـه مړو شويو کې ۳ سوه پاکې مېرمنې اومعصوم کوچنيان دي.

النهار تلويزون ګڼ شمېر هغه عکسونه نشر کړل چې پکې دژوندو انسانانونه داورلمبې راتاوې دي؛ همدا راز دمصر د الوطن نومې اخبار ويب پاڼې پراولې صفحې دهغه ويډيو کلپ نشر شوی چې پکې داورپـه لمبـو کې دژونــدو ګڼوانسانانودسـوځېدلو سـخت دردونکـي منــاظر ښکارېږي

د اګست په ۱۴ مې نېټې چې دحملې اوله ورځ وه دشهيدانوشمېر له ۲ زره او ۵ سـو ه نـه اوښـتي و او ټپيـان ۱۰ زروتـه رسـېدلي وو، دړومبۍ ورځې پـدې حملې کې دشهيدانو اوټپيانو شمېره ځکه ډېره لوړه شوه چې په کمپونو کې ناست ټول خلک بې وسلې وو خوبرعکس حمله پرې ډېره درنده وه، دفوځ، پوليسو او البلطجيـه ملېشو سره يوځای ټـولې امنيتي اداري هم پـه حملې کې شريکې وې؛ دکمپونو نه دوتلو ټـولې لارې پـه ازغنـو تارونوسـختې بنـدی شـوې وې اودهـرې لارې پـه سـر ګڼ شـمېر فوځيان اوپوليس ولاړوو چې چاته يې دوتلو موکه نه ورکوله بلکې هر چا به چې دوتلو کوښښ کولو پـه ډېری بې دردۍ بـه يې پـه نښـه کولو؛ پـه شهيدانو کې داخوان المسلمين دمرشد عـام دمرستيال ښاغلي خيرت الشاطر لور او زوم ډاکټر مصطفی حسن ، دنامتوجورنالست اوداخوان مهـم غـړي محمـد البلتـاجي لـور اسـماء البلتـاجي، داطلاعـاتو او کلتـور وزيراحمـد عبـدالعزيز لـور حبيبـه، ۳۰ جيـد علمـاء اودقرآنکريم نـامتو مفسـر ډاکټـر عبـدالرحمن العويس هم شـامل دي؛ ډاکټـر عبـدالرحمن العويس دقاهرې پوهنتون کې دتفسير اوقرآني علومو پروفيسر اودزرونو علماءو استاذو.

ددرد مقام وچې دټپيانو دپور ته کولو لپاره نه امبولانس و اونه هم دصحت عامې عمله.

هو! داعتراضي کمپونو په ۲ ځايونو النهضه ډګر اود العدويه مسجد خوا شا ميدان کې پر محصورو مېرمنو آفرين چې دګوليوو په روان باران کې يې له ځانونوسره په راوړو عادي وسايلو دټپيانو درملنه کوله؛ اوچې کله معلومه شوه چې دټپيانو شمېر له اټکلونو ډېر زيات دی نود اخوان المسلمين مشرانو په عامو مسلمانانو غږ وکړ چې دزخميانو پور ته کولو لپاره دې دخپلو موټر وسره لاړ و کوځو ته راووځي ؛ ظالم فوځ عام خلک هم دټپيانو پور ته کولو ته نه پرېښودل اودخلکو تر مخه يې دهر شهيد په پاک جسد تېل پاشل او اور يې وراچولو تر دې چې د رابعه العدويه دستر مسجد دننه بر خې ته يې هم اور واچولو اودقر آنکريم دزرونو نسخو سره يوځای يې پکې ټول شهيدان اوسخت ټپيان وسوځول اوچې وحشي زړونه يې پدې هم يخ نه شول نو تر روغتونونو ولاړل شهيدان يې ترې راوويستل ، ويې سوځول اوبيايې چېر ته نامعلوم لرې ځای ته انتقال کړل؛ د الشروق په خبر دازادو رسنيو له لورې هم ددې خبرې تصديق شوی چې فوځيان په زور دټولو روغتونونو نه په مظاهرو کې دوژل شويو تنانو جسدونه راوباسي اوچېر ته پر نامعلوم لوري يې انتقالوي؛ دروغتونونه دمړو دويستلو اوپر نامعلوم لوري يې دانتقالولو لړۍ تر وروسته ځلورو ورځو پورې دوام لرلو دادې لپاره چې نړۍ ته دمړو شمېره کمه ښکاره کړي ځکه خو دولتي راديو او تلويزون وايي چې يوازې ۷۵۰ تنان دفوځ اوپوليسو سره دټپرو ۵ ورځو په اخ وډب کې وژل شويدي ؛ دغاصبې ادارې دې دروغو ته وګورئ! له يوې خوا شمېر دومره کم ښايي اوله بلې خوادې قتل عام ته داخ وډب نوم ور کوي تر څو بشه په سپين سترګې ستر ظلم هم وکړي اوځان بري هم کړي !؟

دروانو عملياتو په جريان کې دنړۍ له ستر ګودتر سره کېدونکو سترو وحشتونو دټولو لپاره دمصر اداري دژورنالستانو په ور تللو هم بنديز لګولی دی ؛ يوازې دالجزيره ، الوطن او الشروق تلويزونونونمايندګانوخپل ځانونه دمرګ خولې ته ور کړيدي ، په مظاهره چيانو کې يې ځانونه پټ کړيدي او دهمدوئ له منځ نه خپلو تلويزونونو ته معلومات ور کوي ؛ که بهر نړۍ دمصر دحالاتو نه څه لږه ډېره خبرېږي نو دهمدوئ له لارې خبرېږي ، خودوئ وايي چې دولت يې دنيولو په هڅو کې دی اود فوځ اوپوليسوله لورې دومره زيات اوښکې بهيونکی غاز کارول کېږي چې دمظاهره چيانوسره په يوې سيمې کې نور ددوئ اوعامو خلکو لپاره اوسېدل ګرانېږي خودسيمې نه وتل هم دځان نه تېرېدنه ده ځکه چې دډګر نه يو وتونکی هم ژوندی نه پرېښوول کېږي اوفوځ يې خامخا ولي؛ دالعدويه جومات په ميدان کې محاصره شوی دالجزيره عکاس احمد ذکي وايي چې دميدان نه وتونکی هر فر دويشتل کېږي ، احمد وايي : زماتر مخه ۱۰ يا ۲۰ نه بلکې په سونوهغه تنان فوځ اوپوليسو وويشتل چې د رابعه العدويه ميدان نه يې دوتلو هڅه کوله ، هغه زياته کړه چې دلته هر څوک ونيول شي بل ځای ته نه وړل کېږي بلکې همدلته يې سمدستي فوځ اوپوليس دخلکو تر مخه وژني هغه وايي چې داخوان المسلمين يومهم مشر ډاکتر حسام ابوالنجار هم زموږ تر مخه فوځ له نيولو وروسته وويشتلو چې اوس په روغتون کې دکوما حالت کې پروت دی.

داخوان المسلمين په ويب پاڼه کې راغلي چې دمسلمانو مظاهره چيانو پر ضد کارېدونکي وسلې فوځ ته داسرائيلوله لورې ور کړل شويدي ددې خبرې دثبوت لپاره دوئ دپوليسو له لورې پر لاريون کونکو دکارول شويو اسرائيلي ساخت اوښکې بهيونکي غاز ګولۍ هم ښکاره کړي



په قاهرې اونورو ښارونو کې چې پېدې دومره وحشت اوبې دردۍ دمسلمانانو قتل عام ته وکتل شي هيڅ سړی داتصور نه شي کولای چې دابه په يومسلمان هېواد کې ددولت له لورې په خپلو هېوادوالو تر سره شوی ظلم وي بلکې داسې ښکاري لکه دچنګېزيانوله لورې چې پدې هېواد ديوې سترې حملې په نتيجه کې



داستر قتل عام رامنځته شوی وي ځکه خو جامعة الازهر په یوې خپرې کړې اعلامې کې ددې فوځي عملیاتو غندنه کړېده او ویلی یې دي چې د ازهر اداري ددا سې خونړ و عملیاتو تصور هم نه کولو.

دالازهر مشر استاذ اوپه نړیواله سطحه مشهور څېړونکي محمد عمار ویلي دي چې دعبوري دولت اوسني اقدام مصر دپخواني دیکتاتور حسني مبارک ددور نه هم ډېر تاریک دور ته یوړو.

دلته داخبره هم ډېره مهمه ده چې داسې نده چې ګینې داقتل عام له ارادې پر ته یاله پروګرام خلاف رامنځته شویدي بلکې پروګرام اواراده له دې هم څوچنده زیاته وه؛ دحملې نه وړاندې دمصر دولتي ورځپاڼې الاهرام لیکلي ووچې دولتي لوړپوړ چارواکوپرېکړه کړیده چې دمحمدمرسي په پلوی کې دراټولو شویو تنانو کمپونه به دیوې حملې په ترځ کې له منځه وړي اودحملې په رومبۍ ورځ به ۲۵ زره اخوانیان وژل کېږي.

دحملې نه وړاندې دنوموړې ورځپاڼې له لارې د دولت دې اخطار داوښووله چې دا قتل عام دپلان له مخې رامنځته شوی اوپلان ددومره سختې اوسترې حملې وچې باید د ۲۵ زرونه زیات تنان پکې وژل شوي وای خودا دالله تعالی فضل وچې خبره لسګونوزروته ونه رسېدله.

او داسې هم نده چې ګینې دمصر بې دینه حاکمان په خپلو اوسنو کړو پښېمانه دي بلکې ښه پرې خوښ دي اوسره له دې چې کړه یې ټوله نړۍ سترو حشت بولي ددې اداري دباندنیوچارو وزارت له لورې په خپرې شوې اعلامې کې راغلي دي چې: دقاهرې په ختیځ کې درابعه العدویه جومات سره اوپه لویدیځ کې دنهضه څلورلاري کې داعتراضي کمپونوپر ضد امنیتي قواوې مناسب اقدامات کوي اودولت یې دکړونه راضي دی.

دتر کې سره یوځای دبر تانې، فرانسې اواستر الیا په غوښتنه دملګروملتونو دامنیت شوری بېړنۍ غونډه هم راوغوښتل شوه، دامریکاولسمشر بارک اوباما هم ددې قتل عام غندنه کړیده اوددې میاشتې په آخر کې یې دمصر دفوځ ګډې پلان شوې فوځي مانوروئ هم ځنډولي دي، ډنمارک هم دمصر سره روانې مرستې ودرولې دي خوهرڅوک پوهېږي چې دادامریکا اونور لویدیځ غولونکې هڅې دي اواصل دریځ یې هماغه دی کوم چې فوځ په عمل کې ښکاره کړ؛ پدې

دمکتب طفل هم پوهېږي چې که دمصر فوځ دامریکا دپټ ملاتړ نه برخمن نه وای هیڅکله به یې هم دیوجمهوري دولت دړنګولو اوددومره لوی قتل عام جرأت نه وای کړی.

نوامریکا اونوره لویدیځه کفري نړۍ خوپه مصر کې هسې هم همدا حالت غوښتلو، دهمدوئ دشوموپلانونو په نتیجه کې داهرڅه رامنځته شول، همدوئ دي هروحشت ته فوځ هڅوي اوپه ملایې ټپوي، خوافسوس پدې دی چې پدې دومره حساسو شېبو کې اسلامي نړۍ ولې بې تفاوته پاتې شوه؟ په یوې دولتي ورځپاڼې کې په ښه ډېری سپین ستر ګۍ دمصر ددولت له لورې دخپل ولس دقتل عام اعلان رامخې ته کېږي خواسلامي نړۍ یې دمخنیوي لپاره هیڅ اقدام نه کوي اوبیا دا اعلان یواځې اعلان نه وبلکې په ډېر وحشت سره عملي هم شو خو دتر کې په شمول دځو هېوادونوله لورې درسمي غندنې پر ته بل هیڅ هم نه رامخې ته کېږي؛ داڅومره دافسوس مقام دی چې په یواسلامي هېواد کې دننه دولس اودولت ترمنځ یوه کوچنۍ ستونزه ده خوټولې اسلامي نړۍ یې دحل لپاره هیڅ ونکړل اوبیاد مسلمانانو د نماینده تنظیم ((او. آی. سي)) په حال خوسل کرته افسوس چې دتل په څېرېې داځل هم پدې حساسوشېبو کې خپل مسئولیت ادانکړ اوپر مسلمانانو ددې دومره سخت حالت سره سره هم دې تنظیم دشرم نه ډکه روژه ماته نکړه.

دسعودي عربستان ددولت نه هم عام مسلمانان عموماً اودمصر مسلمانان په ځانګړي توګه پدې خبرې ډېر ګیلمن دي چې نه یواځې داچې دفوځ اونورو دولتي اداروله لورې درامنځته شوي قتل عام مخنیوي یالږ ترلږه غندنه یې ونکړه بلکې برعکس یې داخوان المسلمین غړي تروریستان وګڼل او داګست په ۱۴ مې نېټې ترسره شوی عملیات یې تائید کړل.

دیادولو وړده چې دحملې نه دوه ورځې وړاندې داوسنۍ اداري دباندنیو چارو وزیر نبیل فهمي اخطار ورکړی ووچې ,, دمحمدمرسي پلویان به داعتراضي کمپونو نه ډېر ژر پور ته کړای شي؛ که ددوئ سره مذاکرات بریالي نه شول نودقانوني لارې به ددوئ نه داکمپونه خالي کړای شي،، نوملګري ملتونه، دبشر دحقوقو په نوم فعالې نړیوالې اداري، امریکااونوره لویدیځه نړۍ داپوښتنه ولې نه مطرح کوي چې دنړۍ هغه کوم قانون دی چې په خپل هېواد کې دننه دې پر دولتي اداري داعتراض کولو په موخه په راټولوشویو هېوادوالو دحملې کولو



اودزرونو ترحده دوژلو اوټپي کولو اجازه ور کړي ؟ دنړۍ کوم قانون د۳ سوه کوچنيانو اومېرمنو دژوندي سوځولو اجازه ور کوي ؟ دنړۍ کوم قانون وايي چې په روغتونونو اولارو کوڅو کې دې دبې ګناه وژل شويو انسانانو جسدونه وسوځول شي ؟

دليبيا قبضه چې مطلوبه وه نوامريکا اودلويديځ لوی شيطاني اتحاد ناټو خودقذافي ددولت په لاس دګوتو په شمېر ديوڅو تنانو په وژل کېدو دقذافي پر اداري يوازې انتقاد اوبنديز نه بلکې حمله کول هم اړين ګڼل خودلته چې ددوئ دلاسپوڅې اداري په لاس په يوې ورځ کې اسلام خوښي لسګونه زره بې ګناه انسانان ټپيان او وژل کيږي نودمنافقت نه ډکودڅو غولونکو تورو پر ته دوئ نور هيڅ کول اړين نه بولي .

محمدمرسي ته بېر ته دواک سپارلولپاره چې دمصر غير تمنو مسلمانانو کومه اوږده مبارزه وکړه اوپدې لار کې يې څومره قربانۍ وړاندې کړې په انساني تاريخ کې به څوک دکوم لومړي وزير يا ولسمشر لپاره دوفادارۍ اوقربانۍ ور کولوداسې ساري وړاندی نکړ ای شي .

امريکا اونوره اسلام دښمنه لويديځه نړۍ بايد پدې ځانونه پوه کړي چې دمصر دمسلمانانو دابې ساري قرباني واک ته ديوشخص در اوستلولپاره نده بلکې دهغی رڼا دراوستلو لپاره ده دکومې دمړه کولولپاره چې اسلام دښمنو غربيانو اوپه اسلامي نړۍ کې ددوئ لاسپوڅو واکمنو شپه او ورځ پر ځانونو يوه کړيده اوداقربانۍ دهغه فکر داحياء لپاره دي دکوم فکر لپاره چې دتاريخ په اوږدو کې دمصر اودنړۍ مسلمانانو سترې قربانۍ ور کړيدي ؛ تاريخ ګواه دی مسلمانو شازلمو تل ددې نور اوفکر مبارکه شجره په خپلو وينو تر وتازه ساتلې ؛ انساني تاريخ پدې هم ګواه دی چې دهرې سترې قربانۍ نه پس داړنامړه شوی نده بلکې وړانګې يې په ډېرې تېزۍ لاپسې خپرې شويدي .

زموږ لپاره دمصر اوسنی حالت ډېر دتشويش وړ دی اوپدې به پوهيږو چې دفوځ په لاس داوسني قتل عام په رامنځته کولوداسلام اومسلمانانو دښمنان غواړي چې ډېرژر مصرهم دشام په برخليک اخته کړي ؛ داوسنۍ سترې خونړۍ پېښې په رامنځته کولوبه دوئ خپل هدف ته په ورتېرېدې کېدلو ځانونه کامياب ګڼي خوموږ چې دنبوي مبار ک عصرنه ترننه خپل تاريخ رامخې ته کړو نو راته دقربانۍ هره داسې پېښه په تور تاريک سمندر کې هغه روښانه جزيره ښکاري چې بالآخره ټول تاريک سمندر دخپلو وړانګو لاندې راولي ؛ موږ يقين لروچې په اوسنۍ پېښه کې دمسلمانانو دسترې قربانۍ په بر کت به دنړۍ اوخصوصاً دمصر مسلمانان خپل دين ته ډېر نېږدې شي ، ددين لپاره دقربانۍ اوجهادي فکر به پکې نور هم قوي شي اوداسلام ددښمنانو اودهغوئ دلاسپوڅوسره به يې په زړونو کې نفرت لاپسې قوي شي ؛ دقوت دسمندر داستر موجونه به نه يوازې داچې پر اسلامي نړۍ دلويديځ له لورې مسلط شوي لاسپوڅي لاهو کړي بلکې داسلام ددښمنانو تر ساحله به هم ورور سېږي چې بيابه يې ددوئ لپاره مخنيوی ډېر ګران وي

نړۍ وليدل چې په مظاهره چيانو کې ژوندي پاتې شوي مسلمانانو دسرونو ساتلو اوکورونو ته دتللو هڅې ونکړې بلکې دخورالوړ همت اوغيرت يې ښکاره کړ او دلاريون لپاره دبل ستر ميدان په لټه کې شول د ۵ زرونه زيات داخوان المسلمين غړي چې مېرمنې هم پکې شاملې دي دقاهرې نه غرب لورته ۲۰ کيلومتره لرې جيزه مسجدسره متصل دمصطفى محمود ډګر ته په رسېدلو وتوانېدل ، همدلته يې اعتراضي کمپونه جوړ کړل چې ور ته دراجمع کېدونکومسلمانانو په شمېر کې ورځ تربلې ډېروالی راغلو ؛ څرنګه چې دحسنی مبار ک پر ضدپه روانو مظاهرو کې اخوان المسلمون د ۲۰۱۱ م کال دجنورۍ په ۲۸ مه نېټه يوم الغضب لمانځلی وه همدارازيې داګست په ۱۴ مې نېټې دوژل شويومسلمانانو په ياد کې ديوې بلې يوم الغضب لمانځلوپرېکړه وکړه اودجمعې په ورځ ددې لپاره په ټول هېواد کې په ۲۸ سترولاريونونو ويستلو بريالي هم شول چې دا او داخوان المسلمين سره دنېږدې ۳۰ سياسي ګوندونو نو اونورو تنظيمونويوځاى کېدل په مصر کې داخوان المسلمين دمقبوليت زياتېدلوډېر روښانه دليل دی څکه خوفوځي مشران اوعبوري ولسمشر سخت ور خطادي ؛ لويديځ ته خورا نېږدې شخص او دمحمد مرسي پر ضد دتمرد په نوم دپيل شويو مظاهرو مخکښ محمد البرادعي چې په عبوري اداري کې دولسمشر مرستيال له خپلې دندې يې استعفى ور کړيده او داليوم السابع په نوم دمصري اخبارپه وينا اوس دفوځ مشر اوعبوري ولسمشرغواړي چې په عبوري اداري کې دمرسي داداري هغه وزيران شامل کړي دکوموترا وچې داخوان المسلمين سره دی ، ددې هدف لپاره دسوداګرواوپه بهرنۍ



نړۍ کې دهغه اشخاصو سره هم اړیکې ټینګې شویدي کوم چې داخون المسلمین سره روابط لري ، دمصریومشهور سوداګر نجیب ساوبرس وایې چې ماته عبوري اداري داخوان المسلمین سره دخبرواتروخواست کړیدی اوراته یې ویلي دي چې پخوانو درې وزیرانو هریو باسم عوده ، یحی حامد اوعمرو دراج ته وزارتونو ور کولو ته عبوري اداره چمتو ده ؛ دوئ درې واړه داخون المسلمین دمنتخب صدراعظم هشام قندیل په کابینه کې دصادراتو ، پانګونې اودبین المللي مرستو وزیران وو ، دوئ دهشام قندیل اداره کې له خورا پوهو وزیرانو څخه ګڼل کېدل او تراوسه پورې عبوري اداري هم په درغلۍ ندي تورن کړي .

خوداخوان المسلمین ویاند طارق المرسي ویلي دي چې فوځي کودتا په نتیجه کې دمسلطوشوو حاکمانو سره به خبرې ونکړو اونه به هم ددوئ په لاس جوړې شوې اداري کې شامل شو .

همداراز داخوان المسلمین یوبل مشر عریان وایې چې فوځ دبغاوت له امله داخوان المسلمین دیو کال ټوله خواري د خاوروسره خاورې کړیده ؛ دفوځي بغاوت شاته چې کوم شوم پلانونه دي ولس ته معلوم شویدي ، دولس حمایت زموږسره دی اوموږبه هیڅکله هم دسازش ښکار نه شو .

دالجزیره تلویزون وایې چې داخوان المسلمین په مقبولیت کې مسلسل ډېروالی راغلی دی ؛ دمحمد مرسي په حمایت کې د ۳۰ سیاسي ګوندونو اومدني ټولنو اتحاد تشکیل شویدی چې دمحمدمرسي په حمایت کې سر کونوته دملیونونومصریانو په راویستلو کار کوي اوډېر ژر به پرې وتوانیږي ؛ همدې حالت دفوځ اوعبوري اداري ترڅنګ امریکا هم په تشویش کې اچولې نوځکه یې دولت ته اخطار ورکړی چې په دولت کې داخوان المسلمین دنه شمولیت په صورت کې به حالات نورهم خراب شي .

که امریکا ، نورلویدیځ اودملګرو ملتونو اداره ربښتیاهم دمصر دحالاتو سمون غواړي نوغوره لاریې داده چې دمصر فوځي مشران دې په خپلو کړو اودلویدیځ مشران دې دفوځ دظلم په نا اعلان شوي حمایت دمصري ولس نه ببښنه وغواړي اومحمد مرسي ته ژر ترژره په واک سپارلودې مصري ولس اونړۍ ته دنورو احتمالي رسېدونکو تاوانونو مخه ونیسي

# ایمان زن مسلمان سبب مسلمان شدن داکتر آمریکایی شد

زایمان یک زن عرب مسلمان که در یکی از شفاخانه های آمریکا صورت گرفت سبب پذیرش اسلام از سوی خانم داکتر مسئول زایمان شد.

براساس گزارش روزنامه "الانباء" : هنگامی که این خانم دکتر به نصیحت این زن مسلمان پرداخته، از جمله توصیه می کند که تا ۴۰ روز اول زایمان از همبستری با همسرش خود داری کند، چون این عمل بسیار خطرناک بوده و به التهاب رحم می انجامد؛ و این زن مسلمان در جواب او می گوید : براساس دین اسلام این را بسیار خوب می داند، باعث تعجب شدید خانم دکتر می شود.

و روزنامه بیان می کند که : این باعث حیرت و سردرگمی خانم دکتر گشته، که دانشمندان بعد از تجارب بسیار که سال ها به طول انجامیده به این کشف دست یافته در حالی که اسلام صدها سال پیش این موضوع را مطرح نموده است!

همچنین روزنامه اشاره می کند این خانم دکتر، به دنبال آن که به پدر طفل توصیه می کند که برای تنظیم ضربان قلب طفل ، او را به طرف راست بخواباند و او در جواب گفته : این را بر اساس سنت شریف نبوی می داند؛ از بیان این مطالب در دین اسلام که علم نوین در سال های اخیر به آن دست یافته ، بیشتر و بیشتر شگفت‌زده شده، به تحقیق درباره اسلام می پردازد و مسلمان می شود.

این روزنامه می افزاید : این خانم دکتر برای یک ماه درخواست مرخصی نموده، به شهر مجاور که دارای مرکز اسلامی بوده رفته، و در آنجا به کمک علما و دعوتگران مسلمان به تحقیق درباره اسلام پرداخته، و با جمعی از مسلمانان عرب و آمریکایی در این شهر دیدار نموده که در آخر با پذیرش اسلام ، مسلمان می شود.

منبع : به نقل از مفکرة الاسلام




# دسلحشور یاد

راټولوونکی : ع ، حکمت

ای تـــازه جـــوان رهـــرو دیـــن بـــاز بپـــا خیـــز
توفنـــده وکوبنـــده وباشـــور ونـــوا خیـــز
دشـمن شـکن وفـاتح و سـرباز خـدا خیـز
سـنگر هـوس وعاشـق آزادي مـا خیـز
از بهـر خـدا بهـر خـدا بهـر خـدا خیز
از بهر خدا خیز

داشعر مې دفارسي ادب لـه کـوم زاړه دیـوان نـه دی را اقتباس کړی ، او نه هم دکوم دودیز افغان ، ایراني یا هندي فارسي شاعر دهنر بیلګه ده ، دا شعر که څه هم پیغام ، آهنګ ، درد او شور په کې داقبال لاهوري دشاعرۍ پروت دی ، او دهماغـه سـتر شـاعر دې شـعر تـه پاتـه کېـږي چې وایـي ( ازخواب ګران خیز ) مګر دا داقبال شعرهم نه دی...

دا غریونیـولي او توپـاني کلمـات ، زمـوږ دهغـه نومـورکي ، مجاهد او غـازي شـاعر د زړه چیغـه ده چې اوس زموږ په منځ کې نشته ، دتاریخي هرات ... دجامي او خواجه انصـاري د ټـاټوبي... نومـورکی شـاعر سمیع الله سلحشـور یـادوم ، چې دهمـدې تېر کـوچني اختـر پـه مبارکـه شـپه یـې (۱۴۳۴/۱۰/۱ هـ ق ) دشهادت په ګلګونـه غیـږ کې ، ټوپـک لـه اوږې او قلم له ګوتو ولوېد .

(انا لله وانا الیه راجعون )

نور هغه شاعر زموږ په منځ کې نشته چې ویل به یې:

برخیـز کـه هنگـام جهـاد اسـت وشـهادت
هنگـام بـه پـا خاسـتن و آزادي امـت
ای مـرد خـدا دور شـو از آتـش غفلـت
ای چـاره گـر درد مـن از بهـر دوا خیـز
برخیـز کـه نـاتو و سـپاهش شـده لـرزان
واشـنگتن و لنـدن ازیـن حملـه پشـیمان
ایـن حاصـل بـازوی تـو اسـت ای شـه دوران
چـون شـیر ژیـان سـربکف و دل بـه صـفا خیـز

*************

دا د ۱۳۸۸ هـ ش کال دحوت یوه باراني ورځ وه ، اتفاقا دهرات دمجاهدینو په یوه میشت ځای میلمه شوم ، څو تنه مجاهدین چې په پښتو او فارسي یې خبرې کولې په دغه میشت ځای کې راټول وو ، ددوی په منځ کې یو تن دمنځني قد ۳۰ کلن ځوان هم وو ، چې ډېره یې کونډۍ کړې وه ، څرنګه چې موږ خورا ظاهر بین یو ، او ډیری پریکړې مو دمغز پـه ځـای پـه پوست او ظاهر بناء وي ، نو ځکه راتـه د مجاهدینو پـه منځ کې دغـه شاوخوا ۳۰ ځوان چې ظاهري جوړښت یې له نورو مجاهدینو بېل وو هسې کوم نامطلوب

ځوک وایسېد ، خو ډېر زر پوه شوم ، چې دهراتي مجاهدینو په منځ کې دغه زلمی کوم عادي ځوک نه دی.

ملګرو رامعرفي کړ ، چې دغه ځوان سمیع الله سلحشور نومېږي ، چې ملګري يې ورته شيخ وايي ، دهرات پوهنتون دادبیاتو له فاکولتې فارغ شوی دی او اوس د هرات په ختيځو ولسواليو ګذره ، پشتون زرغون ، انجيل او نورو سيمو کې دتکړه مجاهد شهيد غلام يحيی اکبري دجبهې او مجاهدينو سرپرستي په غاړه لري ، نوموړی نه يوازې دسنګر تکړه مجاهد دی ، بلکې ښه قلموال ، مضمون نګار او شاعر هم دی ، په هرات کې په خپلو ناڅيزو امکاناتو دهمسنګران په نوم يوه مهالنۍ مجله چاپوي ، چې تراوسه يې ۱۲ ګڼې چاپ شوي دي.

په همدې مجلس کې سره شناخته شوو او نوموړي زه هم وپيژندلم چې داسلامي امارت په فرهنګي کميسيون کې خدمت کوم ، له همدې ځايه مو دادبي ، شاعرانه او جهادي مزاج دمشارکت له امله صميمي دوستي پيل شوه ، نوموړي چې په جهادي ډګر کې دمطبوعاتي او فرهنګي خدمت په اهميت او مؤثريت پوهيده کله مې چې ورته دفرهنګي کميسيون روان فرهنګي خدمات تشريح کړل ، نو ډېر خوشاله شو ، او په داسې تلوسه يې پوښتنې کولې لکه کومه ورکه يې چې موندلې وي ، وروسته يې راته وويل چې دهرات ولايت خلک دنورافغانستان له خلکو يوجلا مزاج لري ، چې هغه ددوی فرهنګي مزاج او له ادب ، کلتور او مطبوعاتو سره علاقه ده ، ددې لپاره چې موږ په جهادي مطبوعاتو ددوی تنده خړوبه کړې وي ما دهمسنګران په نوم يوه مهالنۍ مجله پيل کړې چې په خپلو شخصي هڅو يې لومړی په کمپيوتر ليکم او بيا يې دپرينټر په واسطه چاپوم او دهرات په ښار او شاوخوا کې يې په مينه والو ويشم .

له نوموړي سره دهمسنګران مجلې ټولې ګڼې په کمپيوتر کې پرتې وې ، چې وروسته مو په ګډه وکتلې ، په خورا ادبي فارسي خورا معياري مقالې ، اشعار او مطالب په کې چاپ شوي وو .

سره له دې چې زه ددوی ځای ته دشپې په نيت نه وم ورغلی خو دسميع الله سلحشور مجلس دومره خوږ وو ، چې بالاخره مې دمجلس داوږديدو له امله دهراتيانو په مرکز کې شپه شوه ،نوموړي له فرهنګي او مطبوعاتي جهاد سره خورا مينه لرله او ما هم چې دده استعداد او ليکنو ته کتل نو له ځان سره مې ويل چې کاشکې دغلام يحيی اکبري ځای کوم بل مجاهد ډک کړی وای ، ځکه دغه ځوان واقعا د ټوپک له ډګر څخه دقلم په ډګر کې اسلام ته ډېر خدمت کولای شي.

دشپې نرۍ نرۍ باران اوريده ، زياتره مجاهدين ويده شول ، خو زما او سلحشور مجلس لا نه وشليدلی ، نوموړي خپل ليپ ټاپ کمپيوتر خلاص کړی وو ، او خپلې ليکنې او اشعار يې راته ښودل ، په بيلابيلو ادبي ، کلتوري او فکري موضوعاتو وغږيدو ، په خبرو خبرو کې رامعلومه شوه چې نوموړی پراخه مطالعه لري ، دپوهنتون له ارام ماحول څخه هسې تصادفي دجهادي سخت ژوند ډګر ته نه دی راغلی ، بلکې نوموړی دامت له مسائلو ژور درک لري ، داسلام او مسلمانانو له درد څخه خبر دی ، او په دې پوهيږي چې مسلمانانو ته له دې بحراني حالاتو دوتلو يوازينۍ لار في سبيل الله جهاد دی ، نوموړي شعوري او دسالم فکر په وسله سمبال مجاهد وو ، داقبال لاهوري له شاعرۍ او فلسفې سره يې ژوره مينه درلوده ، بيا بيا يې دنوموړي بيتونه ويل ، او ويل يې چې نوموړي دامت ستونزې ډېرې ښې درک کړي او تشريح کړي دي.

اوس چې داکرښې ليکم ، نو دشهيد سلحشور دهماغه مجلس اود خبرو خوږلت احساسوم ، رښتيا هم هغه يوه بيساري شپه وه ، چې دوو شاعرانو ، دوو مجاهدينو او دوو همسنګره ملګرو دخپل علاقې وړ موضوعاتو په اړه سره زړونه تشول او ديوه بل درد او ارمان يې حس کاوو .

شاعر خو وايي چې:

داسې بله شپه به په نصيب سره راځي
په عمر کې راځي خو له رقيب سره راځي

خو زه وايم چې داسې بله شپه به بيا رانشي ، ځکه سلحشور نور زموږ په منځ کې نشته ، هغه دابديت په سفر تللی او موږ ته يې يوازې يادونه پاته دي.

************

د ۲۰۱۳ ميلادي کال داګست دمياشتې نولسم مازديګر دی ، ديوه خړ کور زنګ وهلې دوازه مې وټکوله ، يو ماشومه نجلۍ چې له څيرې يې معصوميت او دهجرت مظلوميت بادېده راووتله ، پوښتنه مې ترې وکړه : دشيخ سميع الله کور همدا دی ؟ ماشومې غږ ونه کړ او همداسې پټه خوله بيرته لاړه لږ وروسته يو ځوانکی راووت ، څيره يې غمځپلې وه او شونډو يې پترې نيولې وو ، دشيخ سميع الله دکور پوښتنه مې ترې وکړه ، ده روغبړ راسره وکړ او په ګوډه ماته پښتو يې راته وويل چې زه يې ورور يم.

نوموړي دکور دروازه خلاصه کړه او ميلمه ځای ته ننوتو ، که رښتيا ووايم ، زه هميشه دهرکله په پرتله هغه وخت ډير متاثر شوی او غرېو نيولی يم ، کله چې دکوم تازه دم شهيد فاتحې ته ورغلی يم ، او دشهيد په يتيمانو ، پلار او تش پاته کور مې سترګې لګيدلې وي.

له قرأت وروسته مو دشهيد سلحشور روح ته د دعاء لاسونه لپه کړل ، او وروسته مو دشهيد سلحشور دژوند او فن بيلابيل يادونه راوسپړل ، ورور يې وويل چې سلحشور دشهادت په مهال شاوخوا **۳۵** کلن وو ، خو واده يې ځکه نه وو کړی چې دجهاد او شهادت شوق په مخه کړی وو ، نوموړي خپل ډير عمر په سنګر کې تيراوو.

وروسته نوموړي دشهيد سلحشور ځينې ليکنې او اشعار راوښودل ، ده ويل چې سلحشور اوس هم له خپلو فرهنګي هڅو لاس نه وو اخيستی او دخپلې سيمې په په سطحه يې د ( تفنګ ) په نامه يوه محلي مهالنۍ مجله چاپوله ، چې ډيرې ګڼې يې چاپ شوي وې.

له ده څخه مې دسلحشور دلنډ ژوندليک غوښتنه وکړه نوموړي خپل شهيد ورور داسې راوپيژاند .

غلام سخي چې وروسته په شيخ سميع الله سلحشور باندې مشهور شو ، پنځه ديرش کاله وړاندې دهرات ولايت د پشتون زرغون ولسوالۍ په قريه يوسف خان کې زيږيدلی دپلار نوم يې غلام رسول دی.

نوموړي ليسه پای ته رسولې او بيا دهرات پوهنتون دژبو او ادبياتو په پوهنځي کې داخل شوی دی ، دامريکايي يرغل په لومړنيو کلونو کې چې نوموړی په هرات پوهنتون کې وو نو د رخصتيو په شپو کې به له خپله ملګرو سره په پټه کونړ ولايت ته تلو او هلته يې دامريکايانو او دهغوی دمزدورانو په خلاف جهاد کاوو ، دغه راز دپوهنتون دننه يې هم د جهادي فکر او ديرغلګرو سره دمقابلې دعوت هميشه جاري ساته ، او خپل ډير ملګري يې جهاد ته اماده کړي او د غربي وارداتي افکارو له اغيز څخه ساتلي وو.

کله چې نوموړی له پوهنځي فارغ شو ، دغه مهال دهرات په ګذره ولسوالۍ کې دپخواني جهاد يوه قومندان غلام يحيی اکبري دامريکايانو په خلاف دجهاد اعلان وکړ ، چې سلحشور هم ورسره ملګری شو ، نوموړی دقومندان اکبري دمرستيال په حيث دنده شروع کړه او په دې سيمه کې يې وسلوال او مطبوعاتي جهاد خدمت پيل کړ.

نوموړی ډيره موده په همدې سيمه کې په جهاد بوخت وو او کله چې غلام يحيی اکبري شهيد شو ، نو دسيمې په خلکو کې د ډير نفوذ او ملاتړ له امله نوموړی دهغه په ځای وټاکل شو.

نوموړي له وسلوال جهادي ژوند سره سره هميشه قلمي او فرهنګي جهاد هم جاري ساته او په فارسي شعر او نثر ليکلو کې د سترا ستعداد په برکت يې په زړه پورې جهادي اشعار او ليکنې ترمينه والو رسولې.

نوموړی په فارسي شاعرۍ کې لوی لاس درلود ، دغه راز دادبي نثر ، سياسي او علمي تحليل په ليکلو کې هم خورا تکړه وو ، چې له شهادت وروسته سلګونه مقالې او اشعار ترې پاته دي.

د شهید سلحشور ځیني اشعار په څرک ، شهامت او مورچل مجلو کې هم چاپ شوي دي دغه راز یې یو شمیر اشعار دتکړه ترانه ویونکي ملا فقیرمحمد درویش لخوا په مترنم ډول هم ویل شوي دي لکه مثلا دا شعر.

باز به سنگر بیا باز به فکر نوین
برسر دشمن بریز آفت روی زمین

او یاداچې وایي:
آمدم تا ظلم و استبداد ظالم بشکنم
فرق خونخواران دهر و جور حاکم بشکنم

او داسې نورګڼ اشعار.

سمیع الله سلحشور په مختلفو موضوعاتو شعرونه لیکل دلته به دنوموړي هغه شعر ولولو چې په دې وروستیو کې یې دامریکایي یرغل دنوې فتنې اربکیانو او اجیرو ملیشو په اړه لیکلی وو.

اربکی

اربکی جان سر برای دشمن دین داده است
سر برای دالر و عشق شیاطین داده است

دین و ایمان را به دالر کرده سودا همچنان
ننگ وغیرت را به چنگال قوانین داده است

ناموس و وجدان و همت از ضمیرش رفته دور
اختیارش را بدست کفر وبي دین داده است

چرس و بنگ و خمر وافیونش مهیا گشته است
دین وعفت را بدشمن باز و چندین داده است

تا نفس در تن بود از بي دینان دارد دفاع
چون برایش کفر سلاح وپول شیرین داده است

پاسداری و حراست میکند از دشمنان
چون به دشمن باور و ایمان پیشین داده است

تا عروس فتنه و الحاد ازخود کرده است
ای بسا خون جوانانش که کابین داده است

امریکا گم گشته خویش راکنون با اشتیاق
کرده پیدا و برایش تاج زرین داده است

اربکی ها این نمیدانند که رب ذوالجلال
لشکر اسلام را وعده به تمکین داده است

گر بتاریخ بنگرند حق لشکر اسلام را
فتح پیروزی همیش اندر میادین داده است

عنقریب است ای سلحشور اربکی هارا مدام
ازخجالت بینی هرجا سربه پائین داده است

## قطعه

به قبرستان گذر کردم کم وبیش
بدیدم قبر دولتمند و درویش

نه درویش بی کفن در خاک رفته
نه دولتمند برده یک کفن بیش

# غزني او کاپیسا معرکې !!

خبیر احمد



امریکایانو چې نور له افغانستان څخه د تیښتې په حال کې دي او خپله د امریکایي قواوو د وینډوی خبره ده چې د څو تیرو میاشتو راهیسې یې ۹۰ سلنه اډې تخلیه کړې یا نې له ۸۰۰اډو څخه یې ۷۰۰ وبیجاړې او له منځه وړې، د دې ترڅنګ امریکایي وینډوی دا خبره ډیره په غرور تیره اونۍ په کابل کې وکړه چې افغان ملي اردو اوس هغې کچې ته رسیدلې چې د طالبانو مخه ډب کړي او مخامخ جګړه ورسره وکړي، هغه زیاته کړه چې په افغانستان کې یې پاتې ۱۰۰ اډې چې تر اوسه د دوی په اختیار کې دي، هغه ډیرې مستحکمې دي او طالبان نشي کولای چې هغوته ګواښ او ستونزه پیښه کړي.

خو د غزني او کاپیسا په ولایتونو کې د مجاهدینو وروستیو سترو او له هیبت ډکو عملیاتو په اثبات ورسوله چې نه د امریکایانو مستحکمې او پولادي پوځي اډې د مجاهدینو د عملیاتو او جهادي تکتیکونو په مخ کې خنډ جوړیدای شي او نه هم د دوی ملي او ګوډاګي اردو دا توان او جرأت لري چې د مجاهدینو مخ ته تم او یا له خپلو مهمو تاسیساتو او مراکزو څخه دفاع وکړي.

د کاپیسا او غزني په ولایتونو کې په داسې حساسو پوځي مراکزو لوی بریدونه ترسره شول چې د امریکا، ناټو او د کابل د شړیدلي اداري ړنګونه یې په ټکانو او درزار او ستل چې څنګه لسو او یا شلو تنو اتلو مجاهدینو کړای شول چې له ټولو خنډونو، پاټکونو او د پلټنو له سلګونو امنیتي پوستو له ټنو بارو ډکې لارۍ او واړه موټر راتیر او د هدف ځای ته ځان ورسوي، چې د دغو ټولو بریاوو علت الهي نصرت، د ولس له همکارۍ او د اسلام د لارې د سرښندونکو اتلانو اخلاص او سپیڅلې جذبې ده او که څوک لدې علاوه نور اټکلونه او لاملونه ګوري فکر کوو چې په غلطه او واهیاتو روان دي !!

تاسې وګورئ د غزني ولایت په مرکز کې د (پي آر ټي) دفتر چې امریکایانو ټول غزني ولایت او ولسوالۍ له همدې ځایه اداره کولې د روانې میاشتې ( اګست په ۲۸ ) نیټه ۱۲ تنو فدایي مجاهدینو د؟ چاودیدونکو لاریو له انفجار وروسته چې د استبکار پولادي ودانۍ او حساس مرکزونه یې په بل مخ واړول په هغو سر بیره اتلانو ۸ ساعته مسلسله جګړه وکړه، د کره معلوماتو او د فدایي مجاهدینو د تلفوني راپورونو په اساس امریکایي عسکر او د هغو ګوډاګیان چې څه د نسکورو شوو ودانیو لاندې مړه او یا سخت ژوبل شوي وو څه یې چې پاتې وو او د فیر کولو جرأت یې له لاسه ورکړی وو په هغو باندې فدایانو په ډیره ارامۍ مرمۍ وچلولې او د دوزخ کندې ته یې ورولیږل

د فدایي غازیانو د توضیحاتو په اساس په لومړي سر کې د دوو لارۍ موټرو په وسیله چې دواړه له منفجره موادو نه ډکې وې پیل شول، یوه موټر د پي آر ټي نظام قراول او امنیتي پوستې او خوب خوني له منځه یوړې او دوهم موټر د پي

آرټي ځنګ ته د داخلي مزدورو عسکرو دقرارګاه نظام قراول په نښه کړ ، وروسته ۹ تنه فدايي مجاهدين وتوانيدل چې دپي ارټي انګړ ته ننوځي او داستخباراتي معلوماتو دفتر، د توپچي برخه ، دولاړو ځرخکوتم ځاى يو وسلتون او ډيپو او نور تأسيسات تر کللکو او ويجاړونکو ګوزارونو لاندي ونيسي،دبريد له پيل نه لږ وروسته ۲ بهرنى هليکوپتري هم په پي آرټي کې کيښناستي چې سم لاسي دګوزار لاندي ونيول شوي او له سپرلى سره له منځه لاړي ، دبريدونو په لړ کې دښمن دسر او مال درانه زيانونه وليدل ، چې په دقيق ډول ۱۰۹ بهرني اوکورني غليمان قتل ګڼ ټپيان ،۲هليکوپتري ،٦ټانکونه او ۲۰موټرويجاړکړاى شول



دغه راز داګست مياشتي په ۲٦ نيټه دکاپيساولايت دتګاب ولسوالى په جالوخيل سيمه کې ددښمن په لويه قرارګاه دفدايي بريدله امله 80 تنه عسکروژل ووژل شول دعيني شاهدانوپه وينادبريدله امله دقرارګاه په ودانى کې دعسکروتقريباټول هستوګنځايونه اوولاړوسايط په بشپړه توګه ويجاړشول

دکره معلوماتو له مخې دتګاب دملي اردودغه مرکزچې په کللکو حصارونو اوديوالونوکې رابنداورانغاړلى وو اوله شاوخوايې شديده ځارنه کيده اونيږدې ۲۰ سوه تنه عسکريکې ميشت وو؛ خوچې کله داخلاص اوديانت په جذبه اوجامه پوښل شوي يوه تن فدايى اتل وغوښتل چې داسلام اوهيوادغليمانو دغه مهم مرکز په بل مخ واړوي ، الله تعالى خپل نصرت ورسره شامل حال کړ اودخپل سرپه نذرانه يې دصليب ګوډاګيانوته داسې تاريخي درس ورکړ، چې ګرانه ده په تګاب اوټوله کاپيساکې تردېره وخته اجيره اردوهغه دځاخبره لګى ونښوروي

دغزني اوکاپيساله دغو معرکوورسته موږله امريکايانو اودکابل اداري له شرميدلو چارواکو اوپه اصطلاح دملي دفاع وزرات له کاغذي جنرالانوپوښتوچې څه شوي ستاسي هغه مستحکمې اوځواکمني اډې اوځه شو ستاسي دملي اردوچمتوالى اواحضارات؟

دايلمه اوبهانه خومونه په غزني اونه هم په کاپيساکې جوړيداى چې ګواکې دغه ولايتونه دګاونډي هيوادپه پوله پراته دى اوطالبان له ګاونډي هيوادڅخه په زيات مقدارکې راغلي وو اوپلان يې هم هلته ترتيب کړى وو؛ځکه هرڅوک پوهيږي چې کاپيسااوغزني چيرته موقعيت لري .

اوس نوصرف دايوه تبليغاتي اوبوچه هڅه په مخ کې لرى اوهغه هم اجيري ميډيادکابل اداري له وينديانوورانډې هغواستعمال کړه چې دغزني اوکاپيساپه ورستيوعملياتوکې ملکي وګړوته زياته مرګ ژوبله اوښتي !!

خوعام ذهنيت اوبادرکه افغانان پوهيږى چې دغزني د(پي آرټي ) په مرکزاويادکاپيسا دملي اردوپه اډه کې ملکي وګړوڅه کول اوهلته کوم ښارګوټى ووچې ملکي خلکو هلته کلي اوبانډي پکې لرلي اويايي پلاټونه پکې اخيستي وو اودبريدپه مهال دې هغوى ته مرګ ژوبله اوښتي وي !!



# ایاامریکایان به په اربکیوکوم کنهوړ ک کړای شي!!!؟



عبید تنویر

دامریکایانو نورپه دې خبره سرخلاص شوی اودې پایلې ته رسیدلي چې نور افغانستان ددوی دهضم او تمرین ځمکه اوهیواد نده ، ځکه دتیرو ۱۳ کلونوپه مهال یې نه داچې طالبان اومجاهدین مات کړای شول اودافغانستان په کومه لویشت ځمکه کې یې دهغودبریدونواو ګوابنونوله بیم نه ارام شپه سباکړه ، خبره دې ځای ته ورسیده چې عام ولس په داورستیو څوکلونو کې په یومخیزډول دطالبانولور ته مخه کړه اوله هغوسره اوږه پر اوږه ودریدل .

امریکایان اودکابل رژیم ګوډاګیان یې پوه دي چې ددوی په وړاندې دطالب له لیکي اوصف څخه تنهادمدرسي اوجومات طالب اومجاهدنه جنګیږي ، بلکې دهغوپوهنتونوپه زرګونه محصلین ا ودلیسوځلمي شاګردان چې لدوی سره رسمیت لري دجهاداوقربانی په میدان کې ولاړاوپه دوی سخت اوله تکتیکونوډک بریدونه سرته رسوي ، نورعام مسلمانان اودمختلفو طبقواواقشاروسره تعلق درلودونکي افغانان خوپه ځای پریږده چې هرڅه یې دجهادپه نیت وقف اوله هیڅ فداکاری اوسربښندنې مخ نه اړوي .

داسې لسګونه حکایتونه مجاهدینوراته کړي چې زموږ مجاهدوخویندواومیندودلاس ګوتي ، دغاړي امیلونه اونقدي پیسي له خپلې وسې سره سم مجاهدینو ته رالیږلي اوورته ویلي یې چې یایې دکوم بندی دراخلاصون په لاروچاروکې ولګوی اویایې هم دامریکایی عسکروکتارونوته دماین په ایښودولوکې مصرف کړي چې ډیرامریکایان ووژل شي اوالله تعالی هغه هم په جهادکې سهیمي وګرځوي اوجنت یې نصیب شي !!؟

له مجاهدینوسره دملت همدغې بې مثاله همکاری اواخلاص امریکایان اوګوډاګیان په جنون راوستل اونورې ټولي لارې اوحربې پرې وټنګیدې ، نوبالاخره یې ترټولوسولیدلی اوپرسوده نیرنګ چې هغه داربکیانوجوړول دي لاس واچاوه، ترڅوهغه مخلص اومجاهدافغانان وټکوي اووي کړوي چې له طالبانوسره یونوعه همکاري لري ، شپې ، ډوډی اواوبه ورکوي .

که موږ اوتاسې په خپلو کلیواوبانډوکې وګورو، اربکیان دمجاهدینومقابلې ته چې هسې ورسره مخامخ نشي اودتیښتې لاري پرې ونه دریږي نه راوړاندې کیږي ، بلکې دامجاهدین دي چې شپه

ورځ په اربکیانوپسي ګرځي اوداربکي دتخم دور کولپاره هره ټیټه اوهسکه لټوي ،ولې اوداربکیانو مهم کمپاین اودبادار انوله لوري ورسپارل شوی رزالت دادی چې څنګه عام ولس وځوروي ، شتمنی یې لوټ کړي او کورپه کور او کلي په کلي اړودوړاونفرت رامنځته کړي .

ځوورځي وړانـدې غالباداګست دمیاشـتې پـه ۲۰ نیټـه دغورولایت ددولینه په ولسوالي کې دامریکایی دیمکراسۍ ! خاص اوفرمانبرداره پوځ (اربکیانو) بسته لوی کلي اول وکوچول اوبیایې لـه یـوې مخـې چوراوتـالان پـرې ګـډکړ ، ۶۰۰سـوداني پسـونه ، ۷۰۰غوایی او۱۵۰ موټرسایکلونه یې له ځانوسره یووړل .

یعني پور تـه وحشت اوچپـاول یـې مشـت نمونـه خـرواردی ، نورانفرادي مظالم اوتیـري خوپرځای پریږدي چې لاروتـه رااوځي اولـه خلکوجیبونـه تشوي ، مبایلونـه تـرې اخلي ، دلاسو ګـړۍ تـري لوټوي اوان دلاس غوټې او کورسوداوي تري په بډه وهي !!

نواوس مونږ امریکایـانو اوګوډاګیانو تـه یـې وایـوچې ددغسي حرفـوي غلـو اوشـو کماروااودټولني ترټولوذلیـل تـرینوافرادوپـه استخدام به تاسي کوم کنډوراټینګ اوډک کړای شي ؟ اوپـه مقابل کـې بـه افغـان بـاغروره ولـس لـه خپـل عـزم اوهوډڅخـه ورسـته اووګرځوي ؟ چې هیڅکله نه !!.

دابه ومنوچې تاسي دجمهوریت اودیمکراسۍ ددغـه ورسـتي سوغات (اربکیـانو) پـه وسیله بـه یوځـه باعزتـه اودرانـه افغانـان وځورول شي اوشتمنی به یې چور کړي ، ژوندي انسانان به درنځروپه توسـط یـوې اوبلـې خواتـه کـش او اویابـه هـم مـړه جسـدونه پـه ټانګونوپوري وتړي ؛ خوتاسي امریکایان بایدپوه شي چې افغانان دغووحشتونو ته هیڅکله دخپل ایمان اوغیرت وسله په ځمکه نه ږدي ، بلکې نورورسره حساسیت بڼيی اوڅوچنده زیاتـه یې مقابلې ته رادانګي .

افغانانودګلم جمـانو ، پـه سرونو دمیخ ټکوهونکو، همدارنګـه دزرداديانواودنظـارډلي اوسیـافوف دلنـډغروټول جنایتونـه لیـدلي خوبیایې هم له خپل دین اوعزت څخه په کلکه دفاع کړي اونه دي ورتـه تسلیم شوي اوترټولوبشکاره اونیږدي حقیقت خودادی چې ننګیـالي افغانـان دامریکـاد(B52) اونـوروبې شمیره طلسـمونوپه مقابل کې خوراپه نره مقابله وکړه او هیڅکله بې جذبې اوبې مورالـه نشول ، دغـه اربکي لوچکـان خودلوی اومتعـال رب (ج) پـه مرسـته هـیڅ هـم نشي کـولای بلکې دملت اراده اودمجاهـدینو تصـفیوي عملیات به یې لکه خس اوخاشاک دځمکي لـه مخ نـه کـال اونیم کې ټولوي اومحوه کیږي به (انشاالله تعالی )

# د عثماني خلافت یوه بیلګه

د عثماني خلافت په وخت کي به د هر کور په دروازه د د زوازي د ټکولو لپاره دوه ځنځیرونه ځوړند ول چی یو به وړوکی ځنځیر وه او بل غټ دا کار د دی لپاره عام وه چی کله به د چا کور ته میلمه راغی، که میلمنه به ښځه وه نو وړوکي ځنځیر سره به یی دزوازه ټکوله او د کور نه به وز تـه ښځه راتله تر څو دروازه ور تله خلاصه کړی او که سړی به میلمه وه نو غټ ځنځیر به یی تکوه تر څو د کور نه ور تـه سړی دروازه خلاصه کړی.

کله به چب په کوم کور کي مریض.وه نو د هغه کور خلکو بـه د دروازي لـه پاځه د سرو ګلانو یو. ګیـډۍ کیښوده تر څو خلک پوه شي چی پـه دی کور کی مریض دی او بقالان ، ماشومان او لاروي په کلار تیر شی تر څو د دوی غږ دغه مریض په تنګ نکړی



# داخلاقي فساد اوج

سید سعید

ځوورځې مخکې رسنیوخورایوبوږنونکی خبرخپورکړ :په خبرکي ویل شوي چي دتخارولایت دخواجه غارولسوالی په هزارباغ سیمه کي پریوځلورکلن ماشوم جنسي تېری شوی دی ،ځایې پولیسوبي بي سي ته ویلي چي په تېریوکال کي یې په دغه ولایت کي پرماشومانودجنسي تیري څلوروټه پیښې ثبت کړې دي .

ځومیاشتې وړاندې دکندوزدامام صاحب ولسوالی کي هم پریوځلورکلن ماشومان جنسي تیری شوی ؤ.دغه رازځیني هغه ښځې چې په دولتي اوغیردولتي ارګانونو کي دندې ترسره کوي شکایت کوي چي دفتردمشرانواوهمکارانودجنسي ځوروني سره لاس وګرېوان دي اوان کله ناکله په زورجنسي تمایل ته اړیستل کیږي . دافغانستان دبشري حقونوخپلواک کمیسیون وایي چي په تېرکال کي یې پرښځواوماشومانو دجنسي تیري ۱۶۰پیښې ثبت کړې دي .

زیاتره وګړي چي په افغانستان کي داخلاقي فسادیادونه کوي معمولادټوپکسالارۍ کرغیړني دورې ته نغوته کوي ،خودتیري لسیزې همداډول ناوړه پیښې وته که وکتل شي دټوپکسالارۍ دورې نیمایي ته هم نه شي رسیدای .

داخلاقي فسادخپریدوعمده عوامل درسنیو بې سرحده ازادي اودلوړپوړوچارواکوعملي بداخلاقي ده .دلته دنوري نړۍ پرخلاف رسنۍ دملي ګټو، کلتوري اواخلاقي پولواودیني ارزښتونوهیڅ خیال نه ساتي ،چي خپروني یې وکتل شي ته به وایې چي داخلګ داخلاقوا وارزښتونوپه نوم بیخي هیڅ هم نه پیژني ،اوکه دمخنیوي اواصلاح خبره یې مطرح شي ،نوهغوی (برحاله چارواکي )چي څه تمه ترې کیدای شي بیاخپله په همدې بوین ډنډکي دومره غرق دي چي رسنۍ یې نسوارهم نه دي .

ددولت دځلورګونوقواووخیتې داداري فسادپه شان له اخلاقي هغه هم پړسیدلي دي ،داخلاقي فساد ساري ناروغۍ له اویاکلن قاضي ظهورالدین اودځینورسنیودڅښتنانو یوشمېر چلوونکوڅخه نیولې تروزیرعمرزاخېلوال ،والي ګل اغاشیرزي ،سفیرسیدطیب جواد ،سناتورپاچاخان ځدران اوعمرخوړلي حقوقپوه کبیررنجبرپوري سرایت کړی دی . دپرچم ګوندپخوانی اودحق اوعدالت ګونداوسني غړی ،دولسي جرګې مخکینی عضووه اودډیموکراټوحقوقپوهانودټولني مشر(ښاغلی کبیررنجبر) دتېرکال په سرطان کي داختطاف اوجنسي تیري په جرم هغه مهال څارنوالۍ ته وبلل شو،چي په حرمسرای کي یې یوه نجلۍ چي نهه میاشتې مخکي دکابل ددې سبزڅخه تښتول شوې وه وموندل شوه ،یادې شوې مظلومې نجلۍ ویلي چي :«له ځومیاشتوراهیسې په دغه کورکي درنجبرترجنسي ځوروني لاندې وه !». رنجبرچي دنجیب واکمنۍ په یوه موده کي یې دعلومواکاډمۍ پرمهم پوسټ کارکاوه هماغه وخت هم دروته جنایت مرتکب شوی ؤ،خوهغه مهال یې چاپه اړه دخولې چوله ولوزړه نشوالی کولای . درنجبرډېري مرکې مي دازادۍ اوبي بي سي راډیوسره یادې دي چي وښځوته دحقونودورکړي ناره به یې وهلې ،خوافسوس ډیرافسوس چي خپله یې دیومشهورحقوقپوه !! په توګه دیوې نولس کلنې افغاني نجلۍ ازادژوندسلب کړی ؤاوپه پرله پسې ډول یې دهغې بشري حق اوعفت ترکاوبایې پتلانه اوروسي بوټونولاندې کاوه .



په کومه ټولنه کې چې دګورپرغاړه ولاړقاضیان او حقوق پوهان داخلاقي فساد په خوساړنډونو کې غوپه وي ،دملت دبېلابېلو قشرونو ځوانانو ته به څه وښيې ؟،دفرداو ټولني کوم حقوق به ورته توضیح کړي ؟،دبازاراو دفتر کوم اخلاقي اصل به ورته روښانه کړي ؟،دنراوښځي ،مشراوکشر کوم مسؤلیتونه به تشخیص اوورانـدي کـړي ؟!،جوته ده چې همدډول قاضیان اوحقوقپوهان به کله هم دخپل نس وفرج داشباع اوغوښتنوپرته بل څه ته ازګارنشي .

په ډېرتأسف سره په کوردننه اوبهر دهغه ویاړلي هیواد (افغانستان )له بطنه پرله پسې پرښځو ،تنکیونجونو او ډیرو کوچنیو ماشومانو دجنسي تیریوراپورونه اوروچي تاریخ یې په میرانه ،سرښندنه ،حیا،عفت ،ستر،میلمه پالنه ،سخاوت ،اخلاص او صداقت ښایسته دی .ددې ناوړه پدیدې په وده کې لکه مخکې چې اشاره ورته وشوه ترهرڅاډېر دیوشمېر رسنیو اودکابل دمنفوررژیم دچارواکو رول جوت دی ،ځکه همدادوی دي چې داسلامي اومشروع کلتوري ارزښتونوسره کاملامخالف وهغوعقیدوي، عنعنوي اوتاریخي منحرف اوخالص فحش سریالونوته دخپریدواجازه ورکوي چې دټولني په اخلاقي انحطاط اودځوان کهول په انحراف کې یې مخکښ رول لوبولی اولاهم جریان لري ! .

دکابل موجودرژیم چې په اداري فساد کې یې په تېروکلونوکي په پرله پسې ډول په نړیواله کچه لومړی ،دوهم اودریم مقام وګاټه ، اوس نژدې ده چې په اخلاقي فسادکي هم نړیواله جایزه واخلي ،دوی خوافغانستان وشرماوه، سترڅښتن جل جلاله دي ددې شرمیدلوفاسدوچارواکوبیخ هم ژرترژره وباسي چې ټولنه یې له بدنامۍ ،فساداوشرڅخه خلاصه شي .امین

## کیلیاني

خدای پاک د هر مطلوب څیز لپاره کیلي پیدا کړې، چې وربانديې پرانیستل کیږي

- ✓ د لمانځه کیلي یې: پاکوالی ګرځولي
- ✓ د حج لپاره : احرام
- ✓ د نیکۍ لپاره: صداقت او رښتینولي
- ✓ د جنت لپاره : یووالي او توحید
- ✓ د علم او پوهې لپاره: ښه پوښتنه
- ✓ د بریالیتوب لپاره: صبر او زغم
- ✓ د زیاتوالي لپاره: شکر
- ✓ د ولایت لپاره: مینه او یادونه
- ✓ د کامیابۍ لپاره: تقوی او پرهیزګاري \
- ✓ د توفیق لپاره: رغبت او رهبت
- ✓ د منلو لپاره: دعا او غوښتنه
- ✓ د زړه د ژوند لپاره: په قرآن کې فکر او تدبر
- ✓ دسهار مهال خشوع او زاری
- ✓ د روزي لپاره: له استغفار او تقوی سره کوښښ
- ✓ او د عزت لپاره: د خدای امر منل او اطاعت کول
- ✓ او د هر شر لپاره: د دنیا مینه او ډیرې غوښتنې

اخځ/ حادي الأرواح ۱۰۰ م

# ښځینه وکیلانې په لویدیځ کې د سیاسي پناه په لټه کې

محور

د ولسي جرګې یو شمېر برحاله وکیلانې هڅه کوي، د وکالت دورې تر ختمېدو مخکې د سیاسي- امنیتي دوسیو په مرسته لویدیځ کې د پناه چانس ومومي.

د ولسي جرګې د تېرې دورې ښځینه غړې پروین مومند په جرمني کې، سونا نیلوفر په استرالیا کې، فهیمه احمدزۍ په امریکا کې، نجیبه شریف په ناروې کې، فرشته انوري او ملالۍ جویا له خپلو کورنیو سره په لویدیځ کې پناه اخیستې ده.

وېره او د سیاسي شعور ټیټوالی هغه لاملونه دي، چې له افغانستان څخه چارواکي او د ولسي جرګې غړي فراري کوي او په بهرنیو هېوادونو کې یې سیاسي پنا ته اړ ایستې دي.

په تېرو دورو کې د ولسي جرګې د غړیو او د افغان دولت د یو شمېر لوړ پوړو چارواکو د دندو تر پای ته رسېدو وروسته او یا هم د دندو په جریان کې ځینې یې بهرنیو هېوادونو ته وتلي او یو شمېر یې په دې هڅه کې دي، چې له هېواده ووځي او سیاسي پنا واخلي.

پدغه ډله کې د ولسي جرګې غړې فرشتې انوري په لویدیځ کې، پروین مومند په جرمني کې، سونا نیلوفر په استرالیا کې، فهیمه احمدزۍ په امریکا کې نجیبې شریف په ناروې کې او ملالۍ جویا له خپلو کورنیو سره پناه اخیستې ده.

یوې سرچینې محور ته وویل، همدا اوس یو شمېر پخوانۍ او اوسنۍ وکیلانې پدې لټه کې دي، چې څه ډول د وکالت د دورې تر ختمېدو د مخه د سیاسي - امنیتي دوسیو په مرسته په لویدیځ کې پنا واخلي. دوی د دې څه ښې بېلګې د ولسي جرګې پخوانۍ غړې نورزیه اتمر هڅې یادوي، چې اوس مهال ویل کېږي د کورني تاوتریخوالي له امله د کابل په یوې امن خونه کې ژوند کوي او هڅه کوي، پدې تبلیغاتو په لویدیځ کې سیاسي پنا ترلاسه کړي.

سرچینه زیاتوي، د ولسي جرګې یو شمېر اوسنۍ غړې هم دا هڅه کوي له خپلو کورنیو سره په بهرنیو هېوادونو کې مېشت شي. دوی د فاطمې نظري او حبیبې دانش نمونه اخلي، چې استرالیا او کاناډا ته یې خپل چمتو کړي اسناد استولي دي.

په ولسي جرګه کې د کندهار د خلکو استازې شکیبا هاشمي، محور ته وویل، یو شمېر ښځینه وکیلانې د خپل ولس په رایه او باور معاملې کوي او دوی په راتلونکي کې په ولسي جرګه کې د ښځو چانسونه ضایع کوي.

د حقوقي چارو شنونکی اجمل هوډمن وايي، له افغانستان نه د جګړو په لسيزه کې زيات کسان ناهيلي شوي وو، خو په تېرو لسو کلونو کې ورته تر يوې کچې هيلې ورکړل شوې او ژمنې ورسره وشوې، چې د نه پوره کېدو له دې امله يې اوس د فرار زمينه برابره شوې ده.

دی وايي، ډېر کم شمېر کسان دي، چې مصئونيت نه احساسوي او د خطر احساس کوي، خو زيات شمېر کسان بيا له هېواد سره مينه نه لري، نو له همدې امله په دې لټه کې دي، چې څه ډول د ځان لپاره يو دوسيه جوړه کړي، څو په لويديځ کې پناه واخستی شي :((په دغه ډله کې ډېری د پارلمان وکيلان، لوړپوړي په فساد کې ښکېل چارواکي او ځيني ژورنالېستان هم شته دي، چې په لويديځ کې د سياسي پنا په لټه کې دي.))

خو د ولسي جرګې غړي د پارلماني مصئونيت څخه په ګټه اخيستو دا زمينه سازي کوي. په ۱۳۸۷ کال کې داسې رپوټونه خپاره شول، چې ګويا د کوچيانو استازې پروين مومند او فهيمه احمدزۍ په ولسي جرګه کې د خپل وکالت پر مهال له جرمني او کاناډا څخه د سياسي پنا غوښتنه کړې وه. خو ځينې نورو يې له محور سره په خبرو کې وويل، هېوادنۍ مينې اړ ايستي، چې که و هم مري له افغانستانه نه وځي او د وتلو اوازې يې دروغ دي.

له وړاندې يو شمېر نور لوړپوړي چارواکي هم د فساد د دوسيو له امله له هېواده فراري شوي دي، چې ښې بېلګې يې: د حج او اوقاف پخواني وزير او د جمعيت ګوند مخکښ غړی صديق چکري، د افغانستان بانک پخواني رييس عبدالقدير فطرت، د آريانا افغان هوايي شرکت پخواني رييس نادر اتش، د ترانسپورت پخواني وزير عنايت الله قاسمي او ځينې نور دي، خو اوس يو شمېر نور له خپلو موقفونو د سياسي دوسيو په وسيله دغه هڅې کوي

# روغتيا :

**دوينې لوړ کوليسټرول نښې:**

**د کوليسټرول نورماله يا مطلوبه اندازه 200 mg/dl ده چې بارډرلاين يا اخيرې پوله يې 200–239 mg/dl ده که له دې اندازې څخه دوينې کليسټرول لوړ شي دلاندې ستونزو لامل ګرځي:**

**۱ – صدری خناق يادسينې درد چې غاړې ، چپ لاس ، معدې او شاخواته انتشار مومي.**

**۲ – دګرځيدوپه وخت کې دلينګيو دردونه ، چې دوينې در ګونو د تنګوالي له وجې مينځ ته راځي.**

**۳ – په وينه کې دغوټې يالختې منځ ته راتلل چې کيدای شي دوينې د رګونو د بنديدو سبب وګرځي او همدارنګه دوينې در ګونو پريکيدل يا سوري کيدل.**

**۴ – دبدن دپوستکي خصوصا دستر ګوپه شاوخوادپندوزيږ رنګه لکوراميځته کيدل**

**دلوړ کوليسټرول خطرونه :**

**۱ – دوينې در ګونو د ديوال سختوالي او تنګوالی .**

**۲ – دزړه د رګونو ناروغي او تنګوالي چه په پايله کې دزړه عضله (ميوکارډ) په پوره اندازه وينه او او کسيجن نشي ترلاسه کولی .**

**۳ – کله چې دزړه عضله پوره وينه او او کسيجن ترلاسه نه کړي دزړه دحملو او حتی دزړه دودريدو او مړينی لامل ګرځي.**

**۴ – دسينې د درد او ناراحتی (صدری خناق) لامل ګرځي.**

**۵ – دوينې در ګونو دناروغيو لامل ګرځي**

## چوره

**چوره ، هغه روغتيايي ستونزه ده چې ، په هر عمر کې نارينه ته پيداکيږي . کله چې ، په نس کې د کولمويوه برخه له خپل عادي حالت څخه واوړي او بېځايه شي نو دې حالت ته hernia ياچوره ويل کيږي يا هم کله چې ، دځينو لاملونو له مخې د کولمو پر مخ غوړيدلې پرده سوری شي نو په پايله کې يې د کولمويوه برخه بې ځايه او په نوموړې پرده کې له سوري ځای څخه راوزي.**

**عموماً درنو شيانو دپورته کولو ، پړ مخې وليدل او داسې نور درانهکارونه دچورې لامل ګرځي. درد او نورې ستونزې په سوري شوې برخې پورې اړه لري که چېري سوری لوی وي ، نو ستونزې هم ډېرې وي او که کوچنی وي نو ستونزې يې هم لږې وي. خو دوخت په تېريدو سره کېدای شي چې ، دغه ستونزې ډېرې شي. په دغه وخت کې ناروغ ته سخت درد او کېدای شي چې ، دهاضمې ستونزې هم پيداشي.**

**.چوره که دوجود په هره برخه کې وي ، نو څرګندې نښې لري ، دبېلګې په توګه که چېرې چوره په نس کې وي نود نس په پورته ياکښته برخه کې او ياهم له نامه سره وي ، يوډول پاړسوب پيداکيږي.**

**که ددغه پاړسوب برخه وروورو وموښل شي ، نو بير ته خپل عادي حالت ته راګرځي ، خو کېدای شي چې ، دغه پاړسوب بير ته پيداشي.''**

**که تاسو هم له داسې ستونزې سره مخ کيږئ نو کوښښ وکړئ هرڅومره ژر چې کيدای شي ځان ډاکټر ته ورسوئ ځکه چې په کورنيو درملو يې درملنه ناشونې ده**

# د کابل او واشنګټن د اختلاف تر شا

# دفردي مصؤنيت انديښني

سيداختيار سباوون

د کابل د زاړه ښار د مسګرانو په کوڅه کې د رضا خان پښ دوکان و، هغه به هر سهار د دوکان مخې ته د څڅلو دود جوړ کړی وو ، کوم چا ورته وویل علي رضا دا دود د نظره کېدو لپاره کوې که څنګه؟ علي رضا ورته وويل، چې نه دا دود او لوګی ددې لپاره کوم چې خلک زما پر خوا را نشي او د سړک بلې غاړې ته واوړي څکه د دوکان له مخې يې راته پياده رو جوړ کړی دی .

رضا خان بيچاره خو يوازې څو پياده بيچاره ګان له ځانه چپ کول؛ اما زموږ چاروا کو او امريکا د بارودو دودونه جوړ کړي څو د خلکو مخ ورڅخه واوړي، پر موږ مسلطه ورځ او زموږ د ورځني سياست مسير او د هغې د انحراف او انصراف لاملونه ټول په يوه مخه د رضا پښ له فورمول سره سم پر مخ روان دي، هېڅوک له رضا څخه نه پوښتي چې ولې يې بې‌ځايه دودونه جوړ کړي دي او ټوله کوڅه يې د لارې بدلولو ته اړوېستې ده؟ اصل کې د کرزي او امريکا اختلافات د رضا خان دود او لوګي ته ورته دي.

کرزی او د هغې مقابل واشنګټن په څرګنده د يو شمېر داسې شرايطو د شتون له امله په اختلاف واوښتل چې، اصلاً يکې رېښتينولي په پام نه راځي څکه د شرايطو په لړ ليک کې د حرف او عمل ترمنځ توپيرونه له هېڅا پټ نه دي، دوی په دې ظاهري اختلاف سره د خلکو سوچ او شعور په بيه اخلي او وينو يی چې د خلکو فکر يی بوخت کړی دی.

د افغانستان د امنيت مسئله، د پوځ د تجهيزاتو مسئله، د مرستو د تداوم مسئله، له کانګريس څخه ددغه تړون د تصويب مسئله او داسې نور مسايل چې د پردې پر مخ د اختلاف باعث شول اما وروسته وروسته د پردې تر شا داسې نا ويلي مسايل مخې ته راغلل چې ګواکې په اوسنۍ اداره کې د يو شمېر ښاغليو ! د راتلونکې خونديتوب مسئله ددې اختلاف منځنۍ نکته ده او دا کار له امريکا څخه د افغانستان د قوانينو د نقض په حيث يوه غير مرېي غوښتنه ده.

د عامو خلکو سره دا ډول اندېښنې وروسته تر هغې راپیدا شوې چې د کرزي د مشرۍ وخت پای مومي او کابو اوه اته میاشتې وروسته د نوې ادارې د رامنځته کېدو امکانات شته او په داسې یو مهال له امریکا سره د کرزي اختلاف د رسنیو د سرلیکونو سودا جوړه شوه، پداسې حال کې چې ولس ته نه امریکا او نه هم کرزي د قناعت وړ کومه خبره په شونډو لري.

موږ پوهېږو، چې جګړه د طبیعي سرچینو پر سر روانه ده او دغه جوهر تر امریکا په اسیا کې زیات دی لهذا اسیا ته د امریکا مستقیم راننوتل هم اسانه کار نه دی، ځکه دلته هم یو شمېر داسې هېوادونه موجود دي چې په خوله کې زهري غاښونه لري او دغه زهري غاښونه یوازې د بغاوتونو او انارشیو په ایجادولو سره له منځه تللای شي او دا کار امریکا پیل کړی دی. چین ته تبت، مسکو ته چیچن، ایران ته موسویان، هند ته پاکستان او داسې نور... اوس چې امریکا اسیا ته راننوتل غواړي نو دې کار لپاره یې نوې تګلاره ټاکلې چې ښه بېلګه یې د ترهګرۍ په نامه روانه لوبه ده، په دغه لوبو ده کې د جګړې تعریف نشته خو تولید یې شته او هغه د جوړو نظامونو رنګول، د خلکو ترمنځ د قدرتونو د جګړې پېلول، په هره توده نکته کې د استخباراتي میکانیزم پلي کول او په ټوله کې د هغو افرادو او اشخاصو له منځه وړل دي، چې بحرانونو ته پر حل لارو فکر کوي او یا عملاً لاس په کار دي.

په داسې یو تصور ولاړه جګړه کې د وخت په تېرېدو سره انتخاب هم توپیر پیدا کوي او هېڅ پړاو د تضمین او ګارنټۍ صلاحیت نه لري، لهذا که داسې وي چې د امریکا شرایط نور د افغانستان په موجوده اداره کې نه بشپړېږي، نو لازمې ده چې اداره بدله کړي او موجوده جوړښت ورسره بدل کړي، که داسې صورتحال مخې ته راځي، نو احتمالاً ښایي نوې اداره د تېرو دولسو کلونو په ترڅ کې د ترسره شویو حساباتو یو نری غوندې جاج واخلي او یو عمومي سپیناوي ته خبره را وباسي، په دې کار سره به د یو شمېر ښاغلیو له کرداره پرده هم پورته شي او تور او سپین به هم سره بېل شي. نو بیا په اوسنۍ اداره کې د شتو ښاغلیو ډېرو سره باید د خپل مسؤنیت سوال مطرح شوی وي او دغه اندېښنې به یې وهڅوي چې په دې برخه کې له امریکا سره یو نامشروع معامله وکړي.

په ټولییز اعتقاد، که چېرته امریکا له موجوده ادارې سره د فردي مسؤنیت په اړه کومې هوکړې ته ورسي او یا د یو یا څو افرادو راتلونکې له قانوني تعقیبه بېغمه کړي او یایې مرسته په پام کې ونیسي، نو لومړی خو دا د امریکا قانوني حق نه جوړېږي او بیا دا چې د زرګونو هغو بېګناه انسانانو د وژنې فلسفه به رښتیا هم عمدي وي او د تاریخ جبر ته به یې یو ورځ ځواب ووایي، مګر نن یې افغانان ورسره نه مني او نه د فساد په لومه د ښکېلو کسانو سره د مرستې ملاتړ کوي، ځکه د فردي مسؤنیت په فلسفه کې خپله راتلونکې تر نن هم بدتره ویني او له دې امله یې کلک مخالفت کوو

[redacted]

# تنکي اتلان

لطیف الله / ع

## شهید ملاسمیع الله عمري

دترنم بلبل اونو میالی اتل شهیدسمیع الله عمري چې په نصرت باندي يې هم شهرت لاره ، دلوګر ولایت دمرکز دپادخواب شانه کلي په یوه مجاهده اوشهیدپالي کورني کې يې ۲۴ کاله وړاندې دې نړۍ ته سترګې پرانیستلي ، پلاريـ ملااحمدالله اونیکه يې ملاغلام نبي نو میږي .

دشهیدملاسمیع الله پلار اودپلار تره يې ( مرحوم شهیدصوفي جیلاني ) دروسانو پرخلاف په مقدس جهاد کې مهمه ونډه درلودلي اودخپل کلي جهادي قومندانان وو

شهید ، خپلې ړومبنی دیني زدکړې دکلي دجو مات له ملا صاحبانو اوعصری زدکړي يې هم دکلي په مکتب کې تر اوم ټولګي پوري بشپړې کړي

څرنګه چې امریکایی اشغالګرو اودناټو وحشي قواوو دافغانستان پرپاک حریم یرغل راوړي وو ، نو لکه دهیواددنورو مجاهدو ځلمیانو اوځوانانو په څیرشهیدسمیع الله هم دجهاد اوغیرت ولولو واخیست ، زدکړي بې نیمګړي پریښودي اوعملايې په جهادلاس پوري کړ.

نو موړی چې دمیړانې او زړورتیادتګ مناروو ،شپه ورځ به په دې لټه کې وو چې څنګه اوچیرته په اشغالګرو اوداسلام اوهیوادپه دښمنانوزړه تش کړي او بریدپرې ترسره کړي ، دلوګرپه نوروسیموکې به هم تل په جهادي امورواوعملیاتوکې بوخت وو خومهم سنګر يې دعیسی خیلو سیمه ، دپادخواب شانه له کلي څخه پرچپاولګرو حملې اودفاع اودخدرپه کمپاین توغندویی اودمیزایلو کفرلړزونکي بریدونه وو

شهیدسمیع الله به تنهاپه خپل ولایت اکتفانکوله ، بلکي نوروولایتونو ته به يې هم سفرکاوه اوله ملګروسره به په جهاداو فداکار یوکې سهیم وو چې یووخت دکندهار ولایت دپنجوایی ولسوالی ته لاړه او هلته يې په ګڼو عملیاتوکې فعاله برخه واخیستله ، تردې چې په نوموړي ولسوالی کې داجیردښمن له لوري له یوې خونړې جګړې ورسته اسیراودکندهارزندان ته یووړل شو ، چې له یونیم کال زندان تیرولوورسته الله پاک دکندهارزندان داتلو اسیرانو دتاریخي معرکي اوتکتیک په پایله کې چې زندان يې مات کړله سوونونورو مجاهدینوسره یوځای راخلاص اونجات يې پیداکړ .

خودحق او میړانې ددغه سپاهي له جهاد څخه زړه نه صبریده ، هماغه ووچې له څه مودې تیریدوورسته دلوګردبرکي برک ولسوالی په یوې سیمې کې دلوګر دیوه بل نامتو مجاهد مولوي عبدالله سره یوځای دامریکایانو په یوه چاپه کې ونیول شو ، امریکایانو مولوي عبدالله بګرام زندان ته یووړ اوسمیع الله يې په کابل کې دملي امنیت وحشیانوته تسلیم کړ، چې

له ډیروتکلیفونو اوشکنجو تیرولووروسته يې دڅرخي پله زندان ورکړ ، دڅرخي پله له څوکلن زندان څخه الله تعالی په داسې حال کې راخلاص کړ چې هلته يې تروړې دوري پوري کتابونه له اسیروعلمای کرامو څخه ویلي وو ، شهیدچې دخواږه غږ څښتن وو په زندان کې يې شعراوشاعری اوترنم ته هم مخه کړې وه او حماسي ترانې به يې په ډیرزړه راښکونکي انداز زمزمه کولې

کله چې له زندان نه راووت دترنم مینه وال يې دومره ګڼ اوبې شمیره شول چې آن دروان جهاد دنامتو ترانه

ویونکي په کتارکې حساب او په کم وخت کې یې لسګونه دنعتونو اوترانو صوتي اوبصري کیستې اوسیډیاني بازار ته راووتلي اولراوبرخوري وګرځیدي

خو! دتاندي جهادي جذبي دغه نومیالی اتل ، په زندانونوکې داسلام ددښمنانو له لوري کړول شوي غازي ، ددرځنو اشغالګرو قاتل مجاهد اودخواږه لحن اوحنجري بلبل ( شهید ملاسمیع الله عمري ) دروان کال ۱۳۹۲ ل دزمری دمیاشتي په دویمه نیټه د چهارشنبی په ورځ دامریکایی عسکرو په یوه هوایی برید کې دعیسی خیلو په سیمه کی دشهادت لوړ مقام ته ورسیده اوخپله تنکی اونوراني ځواني یې دالله درضا اودیوه اسلامي نظام دټینګښت په هیله نذرانه اوپه ابدي خوب ویده شو ، ځای یې فردوس جنت وګرځه او مجاهدي کورنی ته دې الله تعالی جمیل صبراونعم البدل په دارینوکې نصیب وګرځوي امین ( اناالله واناالیه راجعون )

## شهیدانجینر ثمرګل

شهیدانجینر ثمرګل چه په حافظ باندې شهرت درلود دحاجی سورګل زوی دحاجی نورمحمد لمسی دپادخواب شانه دکلی اوسیدونکی په کال ۱۳۶۹ لمریز کې پخپل یادپلرني ټاټوبی کې یې دې نیمګړي دنیاکی ته سترګي وغوړولې .

نو موړی خپلې لومړنی دینی زده کړی دخپل کلي دجومات له ملاامام څخه وویلي ، بیادمنځنیو عصري زدکړو په خاطر دپادخواب شانه منځنی ښونځی اولیسه وویله ، داهغه وخت وه چې شهید دځوانی منګ ته رسیدلی وه او په هیوادامریکایي اشغال ناولي پنجي خښي کړي وي

شهیدانجینرثمرګل چې له زدکړوسره سره له جهادسره خاصه مینه درلوده دخپل کلي له جهادي مشرڅخه به یې همیش غوښتل چې دجهادلپاره لازمي اسانتیاوي ورته برابري کړي ، خو دکلي دلګي مشرورته ټینګارداوه چې دجهادپه خواکې بایدلوړوزدکړوته هم دوام ورکړي

هماغه ووچې نوموړي دخوست پوهنتون ته په لوړونمبرووبریالی شواودانجنیري پوهنځي ته ومنل شو، شهیدانجینرثمرګل له جهادسره دبې کچې مینې له امله زیاته تلوسه لرله چې په اشغالګرو مخامخ بریدونه وکړي ، امریکایي ټانګونه والوزوي او دښمن په اسانی سره دامجال پیدانکړي چې دپادخواب شانه کلي ته راننوځي .

شهیدثمرګل که څه هم له لوړزهانت اوپوهې څخه برخمن وواودانجنیری پوهنځی یې ترددریم کال پوري ولوسته ، خوهمیشه به یې ویل چې درس اوپوهنتون ورته لکه زندان غوندي بریښي اوتل دارزولري چې په جهادي امورو کې مصروف اوله اشغالګروسره په معرکه کې بوخت ووسي .

شهیدچې دلوګردمرکز اړونددعیسی خیلو سیمه اوهم په خپل کلي کې دمربوطه دلګي مشرتوب ورله غاړې وو لسګونه داسې عملیات یې په دښمن طرحه اوپلي کړي چې له امله یې اشغالګروته په درځنونو ځاني تلفات وراوړیدلي اوګڼ وسایط اوټانګونه یې له منځه وړل شوي ، چې تیرکال ( دالفاروق ) دعملیاتو په اوږدوکې دده اودیوه بل شهیدورورسمیع الله په ډزو داشغالګرویوه هلیکفترهم رانسکوره اوله عملیی سره له منځه یووړل شوه

په پای کې داسلام دغه ریښتینی سپاهي چې داخلاقو ، دیانت ، امانتداری او اطاعت یو لوی غر او ستره بیلګه وه ، خپله تنکی ځواني یې داسلام په لار کې نذرانه او دروان لمریزکال دجوزادمیاشتې په ۲۴ نیټه یې دعیسی خیلو په سیمه کې له دښمن سره تریوې سختې اوتاریخي معرکي ورسته دشهادت جام په سرواړاوه ( اناالله واناالیه راجعون ) جنت الفردوس یې نصیب وګرزه ) امین ، شاته یې په نورودوستانو اودکورنی په غړوسربیره ، دردمند پلار ، خوارکی مور ، یوه بې بې اودوه لوریاني پاته دي .



# شخصیت جهادي وعالم بزرگوار وحقجو

نوشته ( قاضی عبدالجلال )



# مولوی عبدالقدوس

نمیرد هرگز آنکه دلش زنده شد بعشق = ثبت است بر جریدۀ عالم دوام ما

الحاج مولوی عبدالقدوس رحمه الله فرزند مولوی عبدالرزاق و جدش مولوی محمد جان میباشد.

در سال 1316 ه ش در درۀ پشه یی ولسوالی پغمان ولایت کابل در یک فامیل متدین و علم دوست چشم بجهان کشود و مرحوم بعد از سپری نمودن ایام کودکی در آغوش والدین نزد پسر کاکایش مولوی صاحب عبدالغنی به تعلیم علوم دینی پرداخت قبل از تکمیل و اتمام علوم و فنون کاکایش مولوی صاحب عبدالغنی رحمة الله چشم از جهان فانی بست ، مرحوم بخاطر تکمیل آرزوهای دینی اش نزد استاد کل جناب شیخ الحدیث الحاج مولوی صاحب عبدالله جان به ولایت میدان وردک رفته بقیه دروس خود را با دورۀ حدیث نزد ایشان به اتمام رسانید .

مرحوم بعد از فراغت دستار فضیلت را در مدرسه میاه گل جان آغا واقع ولسوالی تگاب ولایت کاپیسا و سند فراغت را به دست آورد .

مرحوم بار اول بصفت امام و خطیب مسجد جامع هزار بزها واقع قلعه واحد کوته سنگی ولایت کابل تعین و به تدریس و تعلیم جونان پرداخت .

وآن زمانی بود که امواج کفر و الحاد و استعمار گرایی کمونیزم کشور ما را تهدید می کرد ، روز بروز جوانان ما را از جاده توحید عقیده ، ایمان منحرف می ساخت

مرحوم بخاطر ادای حق وراثت و ادای حق وجایب دینی بخاطر تحقق بخشیدن ارمانهای اسلامی شب و روز سعی و تلاش نمود و در سال 1349 هنگامیکه کمونیست های مزدور و نوکران سرسپرده کرملین ، قرآن کریم این آخرین کتاب آسمانی و آخرین معجزه همیشگی اسلام را از لیله پوهنتون کابل به زمین انداختند ، پیامبر بزرگ اسلام را العیاذبالله بنام مرد نه زنه توهین کردند ، این عمل کفری سبب قهر و غضب علماء عاملین و قهرمانان میدان انقلاب اسلامی گردید مسجد پل خشتی کابل شاهد بزرگترین تجمع علماء متدین این مقتدایان و پیشوایان حقیقی مردم مسلمان افغانستان بود ، مولوی صاحب عبدالقدوس مرحوم عضو راستین فعال و گرداننده این مجلس بود که بالآخره توسط دولت فاسد و ظالم وقت به 9 ماه حبس محکوم گردید. مرحوم زمانیکه حرکت علماء کرام بنام جمعیت علماء تأسیس شد عضویت این جمعیت را نیز حاصل نمود زیرا از اهداف والا و مقدس مرحوم وحدت امت مسلمه بود و میخواست رابطه جوانان را با علماء کرام مستحکم و قایم سازد تا افراد خود فروخته و اشخاص مزدور با توطیۀ های گمراه کنند نتوانند بین علماء کرام و جوانان شان فاصلۀ خاینانه ایجاد کنند.

به اساس همین فعالیت های خستگی نا پذیر مرحوم بود که دولت فاسد و ظالم وقت وی را بار دیگر محبوس کردند .

مرحوم را این تهدید ها و قید و بندها از مبارزه و خطبه های حق جویانه باز نداشت بلکه احساساتش را زنده و تیز تر میساخت زیرا که از کاکاهایش چون قاضی عبدالقادر شهید ، قاضی محمد فضل ، مولوی عبدالخالق ، مولوی عبدالغفار و مولوی عبدالقهار که در جنگ و جهاد استقلال طلبی علیه انگلیس ها رول فعال داشتند درس آموخته بود .

مرحوم بعد از کودتای سیاه هفت ثور 1357 ه ش مجبور به ترک وطن گردید و به کشور همسایه پاکستان هجرت نمود .

مرحوم در ایام هجرت کوشش و تلاش های زیاد نمود تا تنظیم های جهادی را با هم متحد سازد و در این راه از هیچ گونه سعی و تلاش دریغ نورزید.



مرحوم از اینکه با جوانان مسلمان علاقه بیشتر داشت همکاری خود را با حزب اسلامی اعلان کرد.

در حزب اسلامی وظایف ذیل را با کمال صداقت و راستی انجام داد.

1 – عضو فعال شورای مرکزی حزب و کدر رهبری آن

2 – آمریت ولایت کابل بعد از انتخابات آمریت ولایات ها.

3 – آمریت امراء.

4 – عضو کمیسون امورات نظامی.

5 – عضو کدر علمی دار الافتاء.

مرحوم بعد از اینکه ارمان دیرینه مردم مسلمان افغانستان اتحاد تنظیم های جهادی بود و یک اتحاد بین تنظیم های جهادی بوجود آمد که نام آن اتحاد اسلامی برای آزادی افغانستان بود و استاد سیاف آمر همین اتحاد بود و مولوی صاحب مرحوم عضو همین اتحاد بود و به تعهد خود باقیماند و پس آمریت عمومی مدارس و دار الحفاظ ها را به عهد داشت و وظیفه معاون دار الافتاء اتحاد اسلامی را بعهده داشت و همچنان عضو شورای مرکزی اتحاد اسلامی بود .

بعد از سقوط حکومت کمونستی در کابل و اختلافات و جنگ های تنظیمی داخلی از اشتراک در وظیفه رسمی اجتناب کرده و عضویت کمیته اصلاحی را که متشکل از علماء افغانستان، پاکستان و عرب ها و قوماندانهای جهادی به سرپرستی مولوی صاحب عبدالله ذاکری و عضویت مثل مولوی صاحب جلال الدین حقانی و غیره بودند به عهده داشت و چندین بار بخاطر مصالحه و آشتی تنظیم های جهادی رفت و آمدهای زیادی بین ایشان قایم کرد ولی متآسفانه کشور ما افغانستان در نتیجه جنگ های خانمان سوز و بیهوده به خاک و خون آغوشته شد افراد خود خوا و مستبد به اریکه قدرت تکیه زدند، آرمان جهاد و شهداء مسیر خود را به انحراف تغیر داد.

در همین شرایط اختناق و سراسیمگی و حیران کننده نا گهان حرکت حقانی و متدین و دلسوز بنام حرکت طالبان آغاز بفعالیت نمودند تا افغانستان را از ورطهٔ هلاکت به ساحل نجات بکشانند و مولوی صاحب مرحوم به نداء و صداء التجاء ایشان لبیک گفت و چشم امید خود را بسوی طالبان راستین دوخت.

مرحوم ذریعه خطبه ها و موعظه ها به مجاهدین حقیقی دستور داد با حرکت طالبان بپیوستند و از جنگ دست بردارند.

بعد از پیروزی تحریک اسلامی طالبان در کابل مولوی صاحب مرحوم با سرپرست شورای وزیران امارت اسلامی افغانستان مرحوم ملا محمد ربانی رح چند بار ملاقات کرد پیشنهاد های اصلاحی و سازنده برای ایشان تقدیم نمود و مقامات امارت اسلامی مسؤلیت سرپرستی وزارت شهر سازی را به مرحوم منصوب کردند اما نظر به تکالیف و مریضی که عاید حالش گردیده بود، نتوانیست این مسؤلیت را متقبل شود مرحوم همچنان مستمر و پر تلاش بخاطر وحدت و اتحاد مجاهدین راستین بود، گروه هایکه میخواستند نهضت اصیل اسلامی طالبان را بد نام کنند و طالب نما بودند مورد انتقاد شدید مرحوم قرار گرفت و چند بار بخاطر تفکیک صفوف و تشخیص درست مجاهدین از مجاهد نما بحضور امیر المؤمنین جناب ملا محمد عمر مجاهد شرف یاب شد و در نتیجه همین دید و وادید ها بود که بسیاری از پیشنهاد های اصلاحی مرحوم مورد قبول کدر رهبری حرکت طالبان قرار گرفت.

این عمل مرحوم اولین بار نبود بلکه بارها بخاطر رفع مسؤلیت دینی صدا و نعره وحدت را از طریق خطبه ها و موعظه ها در کانفرانس ها و مساجد جامع دیار هجرت بلند کرد و رهبران جهادی را مورد تنقید شدید قرار داد و مسؤل خون هزاران مجاهدین بی گناه دانست و عمل زشت رهبران را همیشه تقبیح میکرد که در نتیجه همین حق گویی مرحوم چند بار از طرف یکعهده رهبران جهادی تهدید به مرگ گردید ولی مرحوم مردانه وار به انتقاد های اصلاحی خود ادامه می داد.

مرحوم بعد از اشغال افغانستان در مرحله دوم توسط قوای کفری و صلیبی آمریکایی و پیمانی ناتو، همچنان جهاد را فریضه و حق مردم افغانستان می دانست و حکومت مزدور و غلامان حلقه بگوش استعمار گران غربی و پیروان نظام حیوانی دیموکراسی برسمیت نمی شناخت، با صراحت جهاد را در برابر ایشان فرض عین می دانست این شاهکاری های مجاهد بزرگ مولوی صاحب عبدالقدوس مرحوم باعث قطع روابط کلی بین وی و رهبران تنظیم های جهادی سابقه گردید.

مولوی صاحب مرحوم دیار هجرت زندگی را در بین مجاهدین همشه ترجیح میداد بالآخره بعد از 35 سال مهاجرت بعد از 4 سال در بستر مریضی به سن 76 سالگی در شب جمعه المبارک نهم ماه رمضان المبارک 1434 ه ق مطابق 27 سرطان 1392 هش جهان فانی را وداع گفته به لقاء پرورد گارش شتافت، مرحوم در مقبره شهداء و مجاهدین کمپ شمشتو پشاور بخاک سپرده شد روحش شاد و یادش گرامی باد.

سعدیا: مرد نیکو نام نمیرد هرگز = مرده آنست که نامش به نیکویی نبرند.

نمیرد هرگز آنکه دلش زنده شد بعشق = ثبت است بر جریدهٔ عالم دوام ما

# یوه جالبه کیسه

د مسجد په څنګ کې د اوداسه په ځای کې یو مسلمان اودس کاوه چې یو چینایي پروفیسر ور ته متوجه شو د مسلمان اودس یې د اول نه تر آخره ټول ولیده کله چې مسلمان اودس خلاص کړ چینایي پروفیسور یې ژر ژر خواته راغی د مسلمان نه یې پوښتنه وکړه ښاغلیه تا چې په کومه طریقه خپل اندامونه ووینځل دا طریقه در ته چا ښودلې ده ؟؟

مسلمان ځواب ور کړ دا طریقه ماته زمونږ پیغمبر حضرت محمد (ص) ښودلې ده او مونږ هره ورځ پنځه ځلي په همدې ډول خپل اندامونه وینځو پروفیسور بله لبه غږ پوښتنه وکړه هغه چیر ته دی زه غواړم چې ور سرهووینم مسلمان ورور ور ته کړه هغه خو د څوار لس سوو کالو نه ډیر کیږي چې له دې دنیا څخه یې رحلت کړی دی چینایي پروفیسور د تعجب په چرت کې یوه شیبه غلی پاتي شو او کړه یې چې انسانیت ته ستاسو د پیغمبر همدا خدمت دومره ستر دی چې تر اوسه هیڅ بل انسان نه دی تر سره کړی پروفیسور وویل زمونږه وروستي تحقیقات ښیي چې که څوک په دې طریقه خپل اندامونه ووینځي لکه په کومه طریقه چې تا ووینځل هغه انسان به دڅه باندې پنځوس ناروغیو نه په امان کې پاتي شي.

اللّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَّعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ اللّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَّعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيد

# SRAK




دالهجرت دجهادی ستوري دفاتح کاروان دلړۍ (۹) اصدار نشر شو

استاد فضل ولي ((ناګار))

لکه ګلاب ښکاري بغداد، انځور رنګین ورسره
مصر په وینو کې، لمبیږي فلسطین ورسره

په تباهۍ د اسلامي نړۍ، چاونه ژړل
په زمزمو د هلاکو ځي، تور او سپین ورسره

په سره اور وسو، د ((څلویښت ابدالو)) شام شریف
شیعه سني شته خو هیڅ نشته، درد د دین ورسره

سیند ورته خوړ، غرونه یې ښپو لاندې مېده مېده وو
هغه مومن څه شو، ایت مبین ورسره

په لوی اسلام جنګ دی ملا صیب ضوات او زوات پرېده
شیطان راوتی دی ملګري ټول، ضالین ورسره

د اسیا د زړه تودوخه شاوخوا ته رسي
دښمن زموږ پر سر لوبیږي، روس او چین ورسره

د زماني کوم یو فرعون ته بیا نیل جوړیږي
څپې څپې ځي زموږ وینې اباسین ورسره

د شفقي کابل تصویر خپله چینه کې ګوري
تندریې ونیوه فضا هلال پروین ورسره

د سرې لیلا د ډولۍ بد انجام ته یې ونه کتل
د ماتې تور داغ به ډالۍ وړي په جبین ورسره

د پروني غازي وارث د اکبر توره څه کړه
څنګه به غاړه ګرځوي، زنار وریښمین ورسره

زموږ اتل ساړه غوړونه خرابات کې ناست دی
د ملیونونو شهیدانو ستر نفرین ورسره

خدایه! مهدي دا د امت ناجي به کله راځي
محشر محشر، پرښتو ووایئ امین ورسره

چوپ دې شپیلۍ د تکبیر مه شه د ختیځ فاتحه
شمله دې هسکه په ننګ اوسه هوډ یقین ورسره

خلک به وایي چې اسلام او پښتو څه مانا؟
څوک چې غزاله ځي ناګاره اس که زین ورسره